بسم الله الرحمن الرحیم

# اهدا

هغوی ته چې انسانیت یې خپل کړے او د

انسانانو بښګنې ته یې ژوند وقف کړے دے .

«چشتي»

# فهرست

# غلام فاروق چشتي

## او د هغه شاعري

د يو انسان د شخصيت ابتدايي مجمله اندازه د دې نه کيدے شي چې د هغه تعلقات د څرنګه انسانانو سره دي؟ د هغه دوستان، اشنايان او نور افراد د کوم ډول اخلاقو خاوندان دي ؟ ځکه چې هم د دې افرادو خيالات او افکار د يو انسان د شخصيت په تعمير کښې لوی رول ادا کوی. د دې وجه دا ده چې د واړو لوريو ته د صحبت په وجه د استفادې او افادې سلسله روانه وی. او دا يو نفسياتی حقيقت دے چې د ملاقات په وخت په دوو انسانانو کښې په شعوری او غير شعوری ډول په يو بل د تاثير اچولو سلسله روانه وی. او تر هغه وخته د دواړو تعلقات په معتدل ډول هله قايم شی چې په هغوی کښې يو موثر او بل متاثر شی. او دا زما تجربه ده. او د داسې واقعاتو نه په خپله تېر شوے يم.

ما سره د لیدو کتو د پاره اکثر افغان مهاجرین راځي چې
د هغوی سره خو زما پخوانۍ پېژندګلوی ده - او ځینې حضرات
اوس راسره تعارف پیدا کوی - نو یوه ورځ د ښاغلی محمد۔
صدیق پسرلی سره یو زلمے هم راغے د سر او ږیرې وېښتان
یې سپین وو. او د دې سپینو وېښتانو د لاندې د هغه په
سور سپین مخ کښې د ځوانۍ ویښې غزونې کولې ما سره
یې تعارف وشو - دا د ے غلام فاروق چشتی -
نه شم ویلے چې د تعارف نه اول ولې زما د زړه د
ژورو نه د هغه د پاره د مینې او خلوص ځپه پیدا شوه؟!
شاید چې دا وجه وی چې زه هم د چشتی نظامی سلسلې سره
تعلق لرم او غلام فاروق هم چشتی نظامی د ے . او په مصداق
د " المؤمن مرأة المؤمن " دا د هم مشربۍ نه پرتو وی.
خو پسته چې زمونږ تعلقات زیاتېدل نو ماته معلومه
شوه چې د هم مشربۍ نه علاوه نور څه هم شته او .
هغه شاعرانه مزاج د ے چې په مونږ دواړو کښې مشترک
د ے - او بیا چې ما د هغه یو فارسی نظم واورېدو
نو په زړه کښې مې د ارمان یوه انګاره راپورته شوه!
دریغه چې چشتی صاحب په پښتو کښې هم داسې
شاعری کړې وے - او زما دا ارمان ډېر ژر پوره
شو - ځکه چې غلام فاروق د هجرت نه پس پښتو
شاعرۍ ته زیاته توجه کړې وه - او زما خیال وو
چې د هغه پښتو شاعری به ښه معیار ته د رسېدو

دپاره څه وخت وغواړی . ځکه چې فارسی یې به له ډېرې مودې نه په ذهن خوره وی . خو زما دا خیال غلط ثابت شو - پښتو شاعری یې هم ښخی هم په هغه معیار پوره وه . خصوصاً د تضمین په سلسله کښې د یو شاعر دپاره دا خبره ډېره گرانه ده چې د بل شاعر په شعر داسې تضمین وکړے شی چې حق یې پوره شی ځکه چې شاعری کول اسان دی او د بل په شعر تضمین اسان کار نه دے . خو غلام فاروق چشتی زیاتره زما په غزلیاتو تضمین کړے دے او د دې صحیح اندازه هم زه ښه کولے شم چې هغه زما د غزل د هر شعر د مفهوم او مقتضا په مطابق کړے دے که نه؟! نو زه د تردید له وېرې بغیر وایم چې نه یواځې دا چې د هغه د تضمین د هر مخمس مصرعې زما د شعر د مفهوم او مقتضا سره څنگ په څنگ روانې دی بلکې ژبه یې هم ښخی زما په شان استعمال کړې ده .

ځکه نو زه د غلام فاروق چشتی دا مجموعه د پښتو ادب دپاره یو نوے زیرے گڼم . او یقین لرم چې دا به ډېر ژر مقبولیت پیدا کړی . او په اخر کښې به ورته دا خواست هم وکړم چې هغه د دې نه پس په مستقل ډول پښتو شاعرۍ ته توجه وکړی او په دې سره به هغه په پښتو شاعرۍ کښې بر لوړ مقام پیدا کړی .

حمزه شنوارے

پېښور ۴ ربیع الاول ۱۴۰۶ ق هـ

# سریزه

ځینې وخت سیاسي پېښې او اړې کړې د ملکونو د جغرافیایي بریدونو، قومي تهذیب او تمدن کښې د داسې تبدیلیو موجب شي چې د یو عام سړي په وهم وګمان کښې هم نه راځي.

په کال ۱۸۹۳ء د امیر عبدالرحمان خان په وخت په پښتونخوا یوه داسې پېښه راغله چې افغانان یې د ډیورنډ په توره دوه نیمه کړل. بیا تقریباً نیمه صدۍ پس یو بل انقلاب رادبره شو چې په نتیجه کښې یې د تیت پرکو افغانانو د یو بل سره په غم شریکۍ، همدردۍ او نزدیکت جرم او ورورولۍ او یووالي احساس غداري وګڼلې شوه. بیا په کال ۱۹۷۸ء کښې د یو بېروني سیاسي طاقت په مرسته او ملاتړ په بره پښتونخوا یوه فوځي کودتا وشوه چې په نتیجه کښې یې د ذکر شوي دویم انقلاب د ملي احساس او ورورولۍ ټول جرمونه

او د غدارۍ ارتکابونه د انساني همدردۍ په نامهٔ یادکړې شول .

تاریخ وڅرخېد و خو په بل انداز ، د پښتونخوا شرق او غرب سره یوځای شول . د حالاتو په دغه اړیکړی کښې د فراق غرونه ونړېدل او د "آمو" د لمنې "میرا" د "اباسین د غاړې د "قلندر" له وصالونو فیض یاب شو .

د حالاتو چپو د حریت خواهو قافله له خیبره راواړوله . قافلې د باګرام په دښته کېژدۍ لګې کړې او د بېروني جارحینه د انتقام په خاطرجوپې جوپې افغانان د وطن په تقدس د خپلو ملی فرایضو له مخه د غلیم وینې هم د هغو د ککرو په جامونو کښې نوشی .

د "ملالی" د غیرتی ناری په احساس افغانی ننګ یوځل بیا راپارېدلے دے او خپلې آزادۍ او خپلواکۍ د تاریخ سازۍ په فیصله کن حالاتو کښې د وطن د تقدس ، حرمت ، آبرو او حریت د بازیافتګۍ دپاره د سراندازۍ او سربازۍ په بې مثله کردار خپل تاریخ کښې د ننګ او مېړنتوب د حقیقتونو او عظمتونو اضافې کوی .

د غو حریت خواهو کښې د توری د مېړنو سره د قلم مېړونه هم د خپل ملی هدف د تکمیل په ارزو راکوچېدلی دی چې د امیر-عبد الرحمان خان د کمزورۍ سیاسی بصیرت او کوتاه اندیشۍ له کبله د ډیورنډ لاین په نتیجه کښې تر مودو مودو باوجود د هغو د نګارشاتو او ادبی فن د انګازو له اګاهۍ ، د وصال ارزو

ناکامه نامراده وه.

په دغو اهل قلم کښې يو غلام فاروق چشتي هم دے چې د آمو د غاړې د کنډز او خپل وخت د پښتو او فارسي د واړو ژبو يو معروف شاعر دے. چشتي صاحب د خپل منفرد شاعرانه فن له خوا د انفراديت په يو ښکاره مقام ولاړ دے، او د شعر او سخن کوم صنف چې د شاعر ذوق خپل کړے دے هغه د مختلفو شاعرانو په مختلفو غزلو د مخمساتو ليکلو صنف دے.

اګر که زمونږ په کلاسيکې شاعرۍ کښې د مخمس ليکلو رواج ښځوا هم وو او د رحمان او خوشحال نه علاوه څينو نورو پرې هم طبع آزمائي کړې ده. د غو کښې کاظم خان شيدا واحد شاعر دے چا چې د طبعزادو مخمساتو پرته هم د عبدالقادر خان ختک په يو غزل مخمس ويلے دے. کېدے شي چې زما د ممدوح دا انداز هم د کاظم خان شيدا د ذکر شوي مخمس زېر اثر وي. بهرحال د يوې محتاطې اندازې له مخه کم نه کم د تېرو دوه سوؤ کلونو راپه ايسته پښتنو شاعرانو د دغه صنف ښځي هېر کړے وو.

چشتي صاحب زمونږ د عصر هغه ورومبے شاعر دے چې د تول او معيار د واړو په معنیٰ يې د غه صنف ته رواج ورکړو او د خپل فني استعداد په اعجاز يې دوباره راژوندے کړو. اګر که د غه مخمسات طبعزاد نه دي او الهامونه يې د مختلفو غزلو مرهون منت دي ولې د غزل د مختلفو اشعارو يا په خپله د

غزلیاتو مجموعي تاثر، ډیل ډول او خوند رنګ · په مخمساتو کښې لکه د سپرلي رنګونه په ګلونو کښې ګښېدلي او غزېدلي دي ، خصوصاً د تمهیدي مصرعو د غزلیاتو د مطلعو سره په هره معنیٰ یکسانیت خپله د موصوف د شاعرانه ذوق ، بالادستۍ او فني ګرفت هغه حقیقتونه دي چې انکار ترې نه شي کېدے . لکه د رحمان بابا د یوه غزل د مطلع ( د لاندې بند څلورمه او پنځمه مصرعه) تمهید چشتي صاحب په دې ډول کوي :

چې مې کوټ کړه پیاله ستا دمے ناب
په توبو توبو کښې ماموندہ ثواب
زه يې هسې دیوانه کړمه خراب
لاس مې وتړئ د زلفو په طناب
بیا مې وسپارئ د سترګو په قصاب

یا د خوشحال بابا د یوه غزل مطلع (څلورمه او پنځمه مصرعه) او د هغې تمهید هم په دې بند کښې وګورئ :

ستا به تل ماته رغبت وي که به نه وي
د راتلو به مصلحت وي که به نه وي
د دیدار به اجازت وي که به نه وي
ساقي تل به دې داست وي که به نه وي
له جهانه به مهلت وي که به نه وي

د غه شان د غزلو د باقي شعرونو د پاره هم د اشعارو د معنیٰ او مفهوم مطابق تر ډېره حده د کامیابۍ هڅې د دې کتاب په

هر مخمس کښې بـرېښي .

د دې کتاب د اکـثرو مخمساتو دا فرق هـر سړے نه شي په کوته کولے چې کـنې د مخمساتو د هر بند څلورمـه او پنځمه مصرعه د يوهٔ او باقي مصرعې د بل کوم شاعر دی او زما په خيال د مخمس د هر بند ، د غزل مطلع او باقي اشعارو سره د چشتي صاحب د مصرعو تمهيدی مطابقت هـم د دې کتاب د ټولو نه لويه خوبي ده .

همېش خليل

٦ نومـبر ۱۹۸۷م کال

## چشتي صاحب او دا کتاب !

نژدې نیمه پېړۍ پخوا هغه وخت چې د کندز د نوي ښار له
بنسټ ږدولو دوه کاله نه وو وتلي موږ کندز ته ولېږدېدل.
د کندز ښار لوی غونډی وو، د درستو کوڅو زیاته برخه لا
سپېره وه ، پخوانو کندزیانو لا له خپلو زړو مېنو زړونه نه وو
اخیستي او نوي خلک لږ ورته راغلي وو ، چې راغلي وو هغه هم
دوه کوره د یوه ځای او یوه قوم نه نه وو . له بده مرغه زموږ
کور ته مخامخ زموږ د وطندارو کور وو چې تر موږ یو کال
پخوا راغلي وو ، دا کور زموږ لپاره ډېر د تسلی موجب شو.
دا چې او س ورته غږېږم یعنې محترم چشتي صاحب د دې کاله
غړی وو . د ښاغلي چشتي پلار حاجي حمید غوث صاحب
په خټه دوتاني او د غزني د شلګر اوسېدونکی وو . مرحوم
حاجي صاحب هغه وخت شپږ زامن لرل چې دوه یې تر چشتي صاحب

مشران او درې یې کشران وو . چې کله لومړۍ ژمې تېر شو د نوي کال په لومړیو ورځو کښې چشتي صاحب او د دوی دوه کشري وروڼه په ښوونځي کښې شامل کړے شول چې له هغه وروسته د ښوونځي په اوږده او کږه وږه لاره کښې زه یواځې نه وم .

ښوونځے په زاړه ښار کښې وو ، کږې او له خاورو ختو کې کوڅې به موهره ورځ په ګډه وهلې راوهلې . زما عمر به وو اته یا نهه کاله ، ښه مې یادېږي د چشتي صاحب لا ږیره نه وه راغلې ماتې به یې نوی تور شوی وو ، په دې برسېره چې د عمر په لېوني دوره کښې وو دوی ته خدای پاک داسې درنښت ورپه برخه کړے وو چې یوه شوخي ، یوه بېباکي حتیٰ یوه طفلانه لوبه یې چا نه ولېدله ، په تانده ځواني کښې تا به ویل شپېته کلن سړے دے ، تله راتله ، ناسته ولاړه حتیٰ خبرې یې په واک وې . مازیګر چې به موږ د کور خواته توپ بازي کوله یا به نورې لوبې کېدې د دوی ګډون زما نه پکښې یادېږي ، مشران او کشران وروڼه به یې راګډ وو خو دوی ته په کوڅه کښې منډې رامنډې لکه چې ښې نه ښکارېدې ، هر وخت به یې په کوڅه کښې له مشرانو سره اړاوه .

زه له چشتي صاحب سره تخمیناً د نیمې سدۍ پېژندګلوي لرم ، پېژندګلوي هم څرنګه ؟

په نوي د پس او نوي ښار کښې د وطنداري له امله

پیژندګلوی ، په یوه کوچنۍ کښې د نژدې ګاونډیانو پیژندګلوی، په یوه ښوونځي کښې د دوو زده کوونکیو پیژندګلوی، په یوه جومات کښې د دوو همدرسو پیژندګلوی او راوروسته بیا علاوه پر دغو د ادبیاتو رشتې نورهم سره نژدې کړو. کله چې مو وطن سرو یرغلګرو لاندې کړ بیا هم تقدیر یو په بل پسې راوایستو او دا د ے د جهادي ادب خدمت په ګډه سره کوو .

کله چې د چشتي صاحب نوم واخیستل شي ذهن مې د تېرو وختونو هغه بیا نه راګرځېدونکي خاطرې سترګو ته د یوه زړه غوښتونکي فلم غوندې ودریږي، هغه وختې چې زه به د ډېر ماشوم توب او جسمي کمزورۍ په وجه او چشتي صاحب به د طفلي له عالمه د فاصله نیولو په خاطر د نورو زده کوونکیو له ټېل ټېل څخه په تنګو زړو کوڅو کښې د دېوالونو خواته لکه سیورے پټه خوله روان وو . هغه وخت چې به مو د زاړه ښار خواته د ښوونځي په لار کښې کله د کله منار خواته کتل او له لرې به مو د خاورو خټو په چاک چولو کښې د پرې کړيو سرونو وراسته شوی هډوکي لیدل او په وېره او نفرت به ترې تېرېدو .

کله چې د زاړه ښار په زړو بامونو او شړېدلیو دېوالونو بېګنۍ پرخې وهلې رېدې کتار ولاړ وو او تا به ویل چې په تنګو کوڅو کښې د ماشومانو له امېدونو او هوسونو ډکو سترګو ته یې

سرونه راکاږه کړي دی موږ به یې په خوا کښې تېرېدو چې ورته کتل به مو، کله کله به یې له پرخو ډکه لمن را باندې څنډه وهله هم . . .

هغه وخت چې د زاړه ښوونځي په وچو دړو به ناست وو او په ګډه به مو توري درې ته کتل او د خپلې آیندې فال به مو د هغې تورې درې په سپېره تنده کښې لېد . . .

کله چې به د ختو له امله په کوڅو کښې د بوالونو ته ورجوختېدو او په تکلیف به مو ځانونه له خړو ځاځکوساتل په تېره چې کوم سپور به بې پروا په کوڅه کښې آس په تازینه تلو ته هڅاوه ؛ څه به وایم چې د نیمې پېړۍ د کومې خاطرې قلم مې اولسترسترګو ته ودرېږي ؟

یو وخت چې څلورم ټولګي مو پای ته ورساوه قسمت د څوکلونو په مخه سره بېل کړو . غلام فاروق خان چې اوس یې د چشتي صاحب په نوم پېژنو د پورته تحصیلاتو د پاره د اساسي دارالمعلمین د لوستلو په نمط کابل ته لاړ او زه په کور پاته شوم ، له تحصیله وروسته یې په معارف کښې د ډېرو ښوونځیو معلمي او سرمعلمي وکړه ، بیا یې د سپین زر شرکت کار د دې د پاره غوره وګاڼه چې کور ته لنډ وی . په سپین زر کښې یې هم له کتابته رانیولې تر نمایندګۍ پورې په مختلفو ځانګو کښې کار وکړ .

چشتي صاحب حاجي هم دے ځکه ورته اکثره ملګري

حاجی صاحب وایی . اوس په سپینه ږیره کرعه ورځ د جهاد په تبلیغ او د مجاهدینو په تشویق تېروی .

چشتی صاحب له تخمیناً پنځه د برش کلونو راپه دې خوا مونږ د شاعر په صفت پېژنو خو له بده مرغه دوی تر اوسه دا هڅه نه وه کړې چې د خپلو آثارو کومه مجموعه ترتیب او خوره کړی . دوی تر وسه وسه خپله شاعری پټه ساتله .

چشتی صاحب له مطالعې سره ډېره مینه لری ، همېشه د کتابونو مطالعه کوی ، هغه هم زما غوندې سطحی او د وخت تېرولو لپاره نه بلکې د استفادې په غرض .

له شعرو ادب سره پخوانۍ مینه لری ، په پښتو کښې یې د خوشحال بابا ، رحمان بابا او حمزه صاحب شعرونه او په دری کښې د بېدل ، سعدی او اقبال شعرونه ډېر خوښېږی . که څه هم د دوی خپل شعرونه بنایی په ادبی فنونو او بدیعی ښېګڼو ډېر سمبال نه وی ، اما څه چې لری او د قدر وړ دی هغه د دوی ژوندی پیغامونه دی ، یعنې مطلب تر هنر نه جاروی بلکې له قوم اولس سره د نظم په جامه کښې څه ویل غواړی ، هغه څه چې د دوی د ژورې مطالعې او شخصی تجربې محصول ورته ویلے شو .

چشتی صاحب نثر هم لیکی ، خپل خاطرات یې څو سوه پاڼې لیکلی دی چې په هغو کښې د دوی د نثر روانی او په جملو

کښې د اصطلاحاتو کارول د ستاینې وړ دی .

خو بیا هم باید ووایم چې مضامین هم څکه ډېرې په ندرت لیکې چې دوی ته د نورو آثار بښه ښکارېږي او کافي يې کښی چې البته په دې برخه کښې زما ورسره اختلاف دے او غواړم چې ډېر څه ولیکی .

په دې مجموعه کښې چې چشتي صاحب کوم مخمسونه چاپ ته تیار کړي دي په د غو کښې له یو دوو مخمسونو پرته نور درست د دوی د هجرت او جلاوطنۍ د دورې دي، بلکې زیاته برخه د روان کال او تېر کال مخمسونه .

د بل په غزل مخمس په پښتو کښې د ننشت په شمار وو صرف ما د کاظم خان شیدا مخمس د قادرخان خټک په غزل لوستے دے . په دری کښې هم درې څلور سدۍ پخوا د بل په غزل مخمس نه وو دود . په وروسته پېړیو کښې د بخارا او بدخشان شاعرانو د پخوانو استادانو په انتخابی غزلو مخمس لیکل پیل کړل چې اوس هم د افغانستان په شمالي ولایاتو کښې علی الخصوص په بدخشان کښې مخمس ویل ډېر رواج لري. چشتي صاحب دې صنعت ته په خلاص مټ وده ورکړه .

د بل په غزل مخمس جوړول څه اسان کار نه دے، د وزن او قافیو له مراعاتو پرته دوه اساسی تکلفونه شاعر نور هم لري . لومړے دا چې مخمس جوړوونکے باید د غزل له مطلع تر مقطع پورې د هر فرد خیال او مطلب داسې په

پام کښنې ولـرى چې د ده اضافه خبرې سمې ورسره ولګيږى نه داسې چې ( من سخن از آسمان گويم و او از ريسمان ) .

دويمه خبره دا ده چې درست شاعران ديوه سبک او اسلوب پيروان نه دى او د مختلفو سبکونو استادان هريو ځانګړے طرزِ بيان لرى ، که د مخمس جوړونکے خپله د برخه غزل د خاوند په سبک او طرزِ بيان نه وواپى دا به نه لګيدونکے کوشش وى چې په نتيجه کښې د مخمس جوړوونکى خوارى ابته او د لوستونکيو وخت هدر شوے وى .

چشتى صاحب تر ډيره حده دا مشکلات حل کړى دى او په ځينو برخو کښې خوې موفقيت د ډيرې ستاينې وړ دے خصوصاً چې په پښتو کښې د دې صنف عدم سابقه هم په نظر کښې ونيسو .

چشتى صاحب چې کله د خوشحال بابا په غزلو مخمس ليکلى ژبه او خيال يې د يوه ماهر ابکلتر په څير د خوشحال بابا ژبې او خيال ته ډير ورته شى . کله چې د رحمان بابا په اشعارو کار کوى ورته يې پوره بدل کړے وى . دغه شان چې د حمزه صاحب په غزلو مخمس وى هغه وخت بيا د ده ژبه او تخيل بل شان وى ، دغسې هم د درى په مخمسونو کښې .

اوس به يې د مثال په توګه د درې واړو استادانو په اشعارو د تضمين مثالونه راوړو :

په کل چې شي ورلکه، زه يې ستا له لاسه واخلم
ځوله له ګلو ډکه، زه يې ستا له لاسه واخلم
خاطر دې کوم ځکه، زه يې ستا له لاسه واخلم
پياله کړې راته ډکه، زه يې ستا له لاسه واخلم
د شونډو بوسه راکړې بيا په نوره تقاضا يو
"حضرت خوشال بابا"

سوی دے ياره سوی مې طبيعت د ے نوريې تودکړه
سبک د مينې ستاد محبت د ے نوريې تودکړه
اوس مې اور د مينې ته رغبت د ے نوريې تودکړه
تريخ مې جوړ آهن د شخصيت د ے نوريې تودکړه
يم که تکيدلے غزيدلے نه يم زه
"استاد امير حمزه شنوارے"

په تکوين کښې که خاورين دے پيدا شوے
دے له موره په زمين دے پيدا شوے
له همه وُ بهترين دے پيدا شوے
په صورت که آخرين دے پيدا شوے
په معنیٰ کښې اولين دے له هرچا
"حضرت رحمان بابا"

محمد صديق پسرلے
۳۰-۹-۱۳۶۶

# خپلې خبرې

په تصوف کښې د انسانی شخصیت د بشپړتیا یوه ُپټ ضرورت ته ژوره توجه شوې ده او د همدې توجه له برکته د بشری روح او اخلاقو د تعالی په تاریخ کښې تصوف او د هغه لارویانو یو ځانګړے مقام موندلے دے . د انسانی روح او شخصیت د کمال په لاره کښې دا پټ ضرورت مراد او مرشد لرل دی .

په اوسنۍ او پخوانۍ دنیا کښې ډېرکسان دې اړتیا ته نه دی متوجه شوی او په همدې وجه یې سره له ډېرو ګړاوونو د منزلِ مقصود لاره نه ده موندلې او په فانی ژوندون کښې حیران او سرګردان پاتې شوی اوختم شوی دی .

انسان د خپل خلقت له مخې کمزورے او نیمګړے دے هغه د دنیاګۍ په دوه ورځې ژوندون کښې له ډېرو ډېروستونځو سره مخامخ دے . له یوه عادی مکروبه رانیولې تر اجتماعی

رقابتونو او طبیعي مصائبو پورې په زرګونو زرګونو بـلاوې د ژوند په تیاره او کږه وږه لاره کښې پـرتې دي . دا بلاوې طبعاً د وګړي په زړه کښې اضطراب پیدا کوي او د هر ځله داسې وشي چـې دا اضطراب ، حیرت او سرګردانی تر مرګـه پورې دوام وکړي او انساني روح بې له بشپړتیا له نیمګړې دنیا نیمګړے تېرشي . داچې له دې مصائبو سره په مبارزه کښې یواځې ځان ونـه ساتل شي بلکې روح او شخصیت ته غنا هم ورکړے شي ځـه اسانه خبره نـه ده .

له ډېره پخوا راهیسې ځینې کسان او فرقې په دې راز پوهیدلی وو چې په دې مبارزه کښې د کامیابیدلو لپاره د مراد او مرشد لرل یوه بهترینه وسیله ده . په تېرو پېړیو کښې د تصوف لارویان له دې وسیلې خبر شوي وو او په خپلو معنوي سفرونو کښې یې ځنې استفاده کوله .

حافظ شیرازي وایي :

همتم بـدرقهٔ راه کن ای طائـر قـدس
کـه دراز است ره مقصد و من نوسـفـرم

دا « طائر قدس » هماغه د سلوک لارښوونکے دے چې د روح د تعالی د وادی مسافرو ته لاره ښیی او دوی د سفر له خطرناکو مرحلو ځنې په وړاندې تېروي ، د مراد او مرشد ضرورت یواځې نوسفرو ته نه بلکې د هرې مرحلې معنوي مسافرو ته ضرور دے . مولانا بلخيؒ په دې برخه کښې یوښه مثال

دے چې سره له هغومره قوی اروا بیا هم د مرشد او مراد متاز (محتاج) پاتې شوے دے .

د تصوف پاچا عبدالرحمان بابا د تصوف په لاره د خپل مقام ذکر په څومره ښه ډول کوی . وایي :

زه د ځېنو یم مرید د ځېنو پیر یم

هو !!!

د تحیر د شبستان په وادی کښې له کندو ، ژورو ، مارانو او لړمانو د ځان ساتلو یوه اسانه طریقه هم دا ده چې لاروی د سلوک په لاره کښې چاته لاس ورکړی (۱). زه خپل خدای ته ډېر ډېر

---

(۱) متصوفو مفکرانو د مراد او مرشد د ضرورت او اهمیت په باره کښې ډېر څه ویلی دی چې دا لاندې شعرونه یې نمونې دی :

بې مرشده رسیدل و یار ته ګران دی
په کوڅه د مهرویانو رهبر بویه
بې مرشده څوک خبر د مرید اخلی
غوځ په حال د فرزندانو پدر بویه

---

قال را بگذار مرد حال شو
پیش مرد کاملی پایمال شو

---

مولوی از خود نشد مولای روم
تا غلام شمس تبریزی نشد

شکرګذار یم چې زما بېوزلي او سرګرداني اروا ته یې د سلوک لاره راوښودله او د ځوانۍ له ابتدا یې لا له ډېرو کړاوونو وژغورلم .

په ژوند کښې چې هر وخت تیارو راباندې یرغل کړے دے او زړه مې رپېدلے دے نو د تصوف د ډګر قدسي لارښود لاس راکړے دے او ساتلے یې یم .

خو د خپل ذهني سفر په حیرتناک دنیاکښې ډېر ډېر ځله زما زړه غوښتي دي چې د خپلو باطني کیفیاتو په باره کښې څه ووایم . مګر متأسفانه د اظهار وسیله مې نه ده موندلې او د خپل ذهني ژوند په دنیاکښې مې یوه د نه زغملو سټونځه محسوس کړې ده .

ما د خپلو باطني کیفیاتو د بیان لپاره له ډېره پخوا لا د شعر ژبه بنه وسیله تشخیص کړې وه . مګر له بده مرغه زما شعري ژبه د دې محسوساتو په اظهار قادره نه وه او له همدې کبله زما ډېر پخواني اشعار زما د بې التفاتۍ په وجه ضایع شوي دي، یواځې یو مخمس چې ما د شمس الدین محمد حافظ شیرازي علیه الرحمه پر غزل خپل مرشد حضرت خواجه نظام الدین تونسوي د تونسې پیر ته پنځه دېرش کاله پخوا لیکلے وو، پاتې دے .

د کلونو او وختونو په تېرېدو سره زما د ژوند ذهني سفر لاره وهله او نوي نوي تجارب او کیفیات مې محسوسول او د دې کیفیاتو د اظهار تنده مې وار په وار ډېرېدله .

یو وخت د دې تندې غلبې دې ته اړوېستم چې خپل ژوند لیک

ولیکم او په هغه کښې که ممکنه وه د خپل ذهنی او باطنی ژوند له محسوساتو هم څه ووایم . مگر سره له دې چې په سلگونو څنه ژوند لیک مې ولیکلو خو هغه تنده مې په خپل حال پاتې شوه او د زړه غوټه مې خلاصه نه شوه . د روحی ستړیا په دې وخت کښې د استاد امیرحمزه خان شنواری صاحب د اشعارو او غزلو په لوستلو بوخت شوم او ورو ورو مې د اسې احساس کړه چې ما د خپلو تجربو د اظهار لپاره هم مراد او مرشد وموند . د استاد حمزه شنواری شعرونو د خپلو اندرونی کیفیاتو د اظهار وسایل او افزار او تخیل او له څه فکره وروسته مې دا اراده وکړه چې د استاد حمزه شنواری پر غزلو به مخمسونه لیکم . د غزل د پلار اشعارو د پښتو ادب د نورو استادانو د دیوانونو مطالعې ته هم وهڅولم او په دې لړ کښې مې د خوشحال بابا او رحمان بابا د دیوانونو نسبتاً دقیقه مطالعه وکړه او د نوموړیو ځینې غزلې مې هم مخمس کړې .

زه ځان د دې خبرې په ویلو مکلف گڼم چې د شعر او شاعرۍ په دنیا کښې نوموړې درې کسان زما لارښوونکی دی او که د دوی اشعار نه وے نو خدائ زده چې ما به د زړه د غوټو د خلاصولو چل څنگه زده کاوه . لکه څنگه چې د طریقت په لاره کښې مرشد یا لارښوونکے په لاروی د بر حق لری، همدارنگه د پښتو ادب په دنیا کښې خوشحال بابا ، رحمان بابا او د غزل پلار استاد امیرحمزه - خان شنواری صاحب زما حقداره دی او په ادبی سفر کښې یې زما " همت د لارې بدرگه کړے دے " .

د دوی د غزلو له مخمس کولو وروسته د فارسی ادب د ځینو شاعرانو د غزلونو د تخمیس په فکر کښې ولویدم . په فارسی ادب کښې ما له ډیرې پخوا د ابوالمعانی بېدل و علامه اقبال له اشعارو سره ډېره مینه لرله او د هغوی د غزلونو د مخمس کولو په وسیله مې وغوښتل چې په ځان باندې د هغوی د معنوی حقونو پور پرې کړم .

په دې کتاب کښې شامل مخمسونه له یوه نیمه پرته ما چېرته د مخه نه دی چاپ کړي مګر ډېرې د دې سیمې په ادبی غونډو او مشاعرو کښې وخت په وخت اورولی دی او زه د مخمساتو د ویلو په برخه کښې د دې سیمې د ادبی جرګو د ادیبانو د تشویق مرهونِ هم یم .

په صوبه سرحد کښې ادبی غونډې او جرګې د پښتو ادب د پراختیا او پرمختګ لپاره ډېر ستر خدمتونه کوی او د تاسف ځای دے چې زموږ په وطن افغانستان کښې ادب له دې مؤثرې وسیلې نه بهره مند نه وو .

ما چې به کله حمزه بابا ته د ده پر غزل خپل لیکلے مخمس وړښکاره کړ وروسته له لوستلو به یې راته وفرمایل چې دا سې مخمسونه نور هم ولیکه او بیایې د کتاب په شکل چاپ کړه ، او هم په دې ادبی جرګو کښې مخمس اورولو په دې باوری کړم چې که خپل مخمسات چاپ کړم نو یو مثبت کار به مې کړے وی .

له بلې خوا په دې کتاب کښې د روس د تېری او د افغان مجاهدینو

ځوانمردانه مقاومت او د ناع په ارتباط هم یوه برخه اشعار شته چې د هغوی په دې وخت کښې خپرول راته لازمی ښکاریدل . د دې مجموعې نوم مې "د چشتی مخمسات" وټاکه .

فکر کوم چې د ویلو وړ ضروری خبرې مې وکړې نور نو د لوستونکیو وخت نه نیسم او له کتاب سره یې پریږدم .

په درناوی
"چشتی"



دافغان په ننګ مې وتړله ٹوره
ننګیالے دزمانې خوشحال خٹک یم
"خوشحال بابا"

١

یوخیاط که ښه جامه ګنډي پرې ناز کا
ساز نده لره عزت د ده په ساز کا
هنر څه دے ؟ لږ ښکاره د حسن راز کا
صورتګر چې ښه صورت په دېوال ساز کا
کل عالم یې په صفت ژبان دراز کا

سوچ د هسې صورتګر په هنر نه کا
چې په کار او ارادې څوک خبر نه کا
کره جوت وی د فاعل دید بصر نه کا
د هغه نقاش په صنع نظر نه کا
چې له څه شاخکی نه دا نقش و طراز کا

هغه آب چې دې دُر کېږدی په مخ کښې
یا ګلاب ته رنګ ښه سور کېږدی په مخ کښې
د انسان ښکلے انځور کېږدی په مخ کښې
سترګې، وروځې، پوزه نور کېږدی په مخ کښې
غاښ وشونډې، ژبه، خوله سره پرداز کا

څښې سره ار څښې ژبې ور، ور مخونه
شونډې ورې وی هسې سرې لکه لعلونه
دې جوړښت کښې شته عجیبه حکمتونه
یو سر بل سرپه سر جوړ کا دوه غوږونه
چې په دواړه اوریدنه د آواز کا

سترګې څورنده خپې وی لکه لېږدی
مضرشیان سترګو ته کله بانړه پریږدی
دوه لاسونه چې خرد یې فن ته ربېږدی
بند په بند د لاسو ګوتې وبله کښېږدی
سرترپایه درست صورت سره یو راز کا

د انسان صورت کامل دے تر آفتابه
په جوړښت کښې حکمت ایښے بې حسابه
د ده حسن نه په غره نه په دریابه
که څوک زر کتابه وکښی له دې بابه
که په کښل شی زر به نور پسې آغاز کا

نه «چشتی» که خبر نه وم له احواله
له خوشحال بابا مې پند واخیست فی الحاله
اوس به پوه یمه واقف له خپله حاله
خاص بنده د خدایٔ هغه کڼه «خوشحاله!»
چې د ځان په معرفت یې سرفراز کا

۱۳۶۵/۱۲/۱۹

## نعت شریف

۲

ما ترې ځار کړې یو جوهر دے دافلاک
بعد له خدایه په هستۍ کښې دده واک
څنګه یې وستایمه برې لې له ادراک
چې په روی به یې بخښل شي پاک ناپاک
بل سړے نه دے صاحب دے د لولاک

سر ترې ځار شه په سل واره هم مې مال
له ادبه زمانه زده قیل و قال
چې ښښتن دے د جلال او د جمال
تر هلال یې صدقه شم تر بلال
په اخلاص یم زه د دوی د تلې خاک

اخلاصمن زه د بوبکرؓ او عمرؓ یم
جان نثار زه د عثمانؓ او د حیدرؓ یم
زه عاشق د هغه ښکلي پیغمبرؐ یم
د بوذرؓ او د سلمانؓ یې د روبزکو یم
تل د دوی په محبت دے زما ژواک

په عمل او عقیده کښې بهترین وو
هر عمل یې له رضا سره قرین وو
په رښتیا چې خادمان د دغه دین وو
په دا هسې مرتوب یې آفرین وو
چې په کار یې محمدؐ شو فرحناک

اخلاصمن او فدا کار د سرور ډېر دی
په څوواره دوی تېر شوی ترسره ډېر دی
څه به یې ستایم له بهترو بهتره ډېر دی
که سواره یې مړنی د لښکره ډېر دی
لاس زما د دلدل سوار د زین فتراک

په حسن، حسین رض یې نور حسن ښکاره کړ
ټول جهان یې تر قیامت په ننداره کړ
ولایت او شجاعت یې خپل ښکاره کړ
د خیبر په کوټ یې هسې زور ښکاره کړ
چې له بیخه یې راوناړول پاک

په تقیانو او ولیانو کښې سرور وو
د غه نه وایمه زه چې پیغمبر وو
خو امیرالمؤمنین علی حیدر رض وو
محمد د علم ښهر، د ده یې ور وو
تر قمبر یې شه خوشحال خټک فداک

۱۳۶۶/۱۰/۴

## ٣

انساني ټولنه نغښتې په الفت ده
دغه مینه وسیله د معرفت ده
مینه پوهه مې کامله هویت ده
د مجاز عاشقي عین حقیقت ده
وهغې ته زینه ایښې د صورت ده

په دې زمکه او سما که فهم وکړې
په مادې او په معنا که فهم وکړې
په سوا او ماسوا که فهم وکړې
له ثرا تر ثریا که فهم وکړې
په څلور کنجه غوغا د محبت ده

د هستۍ به هېڅ نوم نه وو که عشق نه وے
د وجود به مفهوم نه وو که عشق نه وے
دا ذرې، اتوم به نه وو که عشق نه وے
په جهان به هېڅ نوم نه وو که عشق نه وے
دبد به د عشق قایمه تر قیامت ده

که ښتن څوک د باور او د ایمان وی
هغه څوک به په هر ځای کښې په امان وی
د تکوین په سمه لاره که پویان وی
چې په مینه کښې یو زړه او یو زبان وی
تر هر چا د هغو چار په برکت ده

له جهانه د غم خم په غوبړو واورئ
بنه کوئ وایمه بنه په غوبړو واورئ
دا وینا مې ده په خوله په غوبړو واورئ
دا یوه وینا د زړه په غوبړو واورئ
چې بهتره د اورنګ تر سلطنت ده

زر دې دروهي، لال دې دروهي، پت دې نه ځي
پر دې دروهي، بال دې دروهي، پت دې نه ځي
ورځ دې دروهي، کال دې دروهي، پت دې نه ځي
سر دې دروهي، مال دې دروهي، پت دې نه ځي
د سړي د چارې کل خوبي په پت ده

چې د مينې تار له چا سره پيوند کړي
په ليدو يې چې خوږه سترګه د خوند کړي
په وينا او په کتو يې ارجمند کړي
چې يو ځله زړه د چا په مينه بند کړي
په شلول ځني کمې د مروت ده

لور بينه که لري صفا به وړشي
چې د سولې نيت لري سلا به وړشي
که د بل ګټه پالي طلا به وړشي
چې د نيت بدی لري بلا به وړشي
ترهرڅه بده بلا بدی د نيت ده

نه ماضي، نه مستقبل وایم له حاله
د بل چا له عمل مه کړه استحصاله
"چشتي" ښو وته تلوار کوه في الحاله
چې کښوته نصیحت وایي "خوشحاله"!
وایه څه فایده ستا د نصیحت ده؟

۱۶ / ۱۲ / ۱۳۶۵

## ۴

ویښتوب نه وېده توب وو، وارهٔ ګډ په ښه دنیا یو
خوښې راوړ وو، څو! ټنګ ټکور کوو په ورایو
اتڼ دے، خوشحالي دی، په خپل منځ ګبنې داسې وایو
ما خوب لیده په خدایږو چې زه، ته سره پخلا یو
خوږې خوږې خبرې، د زړه حال وبله وایو

ختې وې د ناویو، پړک شرنګا ګوې پسولونه
پېغلې دی، زلمیان دی، هرڅوک بېل کړې اتڼونه
تېر شول اتڼونه، بیایې واچول ټالونه
ما څخه کتاب دے، پکښې وارهٔ غزلونه
تا څخه مینا ده، د ګلزار په تماشا یو

داسې ښایسته یو، له ښایسته ځنې نا ځو
هومره پاک، روڼه یو، لکه اوښکې ونه ځاځو
یو بل ته په مینه کښې رغبت کوود کاځو[1]
لاس ترلاس نیولي سره ګرځو، کښېنو، پاځو
خپله خوشحالي، هوا، هوس کړوا په خندا یو

په ګل چې شې ورلکه، زه یې ستاله لاسه واخلم
ځولۍ له ګلو ډکه، زه یې ستاله لاسه واخلم
خاطر دې کوم ځکه، زه یې ستاله لاسه واخلم
پیاله کړې راته ډکه، زه یې ستاله لاسه واخلم
د شونډو بوسه راکړې بیا په زوره تقاضا یو

---

(۱) کاځو (کاځي) په غیږ کښې اخستلو ته وایي .

ترکۍ، هندکۍ خوبانو، افغانۍ او ایرانۍ
نظر له هر چا یووړ بیا یې ور کړې حیرانۍ
زه بشکلې پښتې خان یم، ته سپېڅلې درانۍ
ته کل وارہ خوبۍ لرې، زه وارہ کامرانۍ
ښادي ته مخامخ، غم او اندوه ته شا یو

نژدې ومه، لګیا وم، د هنر په بخت راویښ شوم
په باغ کښې زه د سرو، صنوبر په تخت راویښ شوم
سوړ، کلک ولګېده د خیل ښادر په رخت راویښ شوم
ناګاه له دې خوبه د سحر په وخت راویښ شوم
نه ته وې، نه دې وصل، زه دا کار سره جدا یو

د لوږې او نېستۍ خوهوکه ډار راسره نښته
د بل چا د هوا هم انتظار راسره نښته
د وږیو او لوږتمار و شکرتار راسره نښته
څوپایم په دنیا کښې د چا کار راسره نښته
یو زه یم، یو دې غم د ے، سره د وارہ خوا په خوا یو

یوازې چشتی نه دے، د دې شعر د پرمشتاقان شته
د خپل خیال او ضمیر په دې وطن کښې نطاقان شته
په زمکه د انسان چې شعر کړی هغه دهقان شته
خوشحال یواځې نه دے خو په ملک کښې شاعران شته
په خوب، په بیداری کښې سره واړه باد پیمایو

۱۳۶۵/۱۲/۱۷

۵

یار د رزم نغمه غوښته زه یې سور کړم
د دښمن ورانیو ته یې انبوه کړم
چې په قید مې آزمایي ځکه یې حور کړم
زماني له ښو یارانو نه مهجور کړم
څه بلا یې مبتلا په د ېر ضرور کړم

په هر رنګ چې مې یار غواړي د پره ښه ده
د فطرت خوهره غوښته پښتنه ده
د عمل زړبرمه تل ماوته توښه ده
نوره واړه پښتو نخوا په ځای میشته ده
خو یو زه دي زماني پکښې منصور کړم

د روسي د زور ژيالي په تور توفان کښې
په بمبارد، د ځبل شوي په سوران کښې
ځوانان ځي په شهادت دارالايمان[1] کښې
مرګ هومره مهلت راکړه په جهان کښې
چي جمدرد مدعي په وينو سور کړم

ابتلا کښې ما جهان په ننداره کړ
د احمد[2] فرياد مي پورته دوباره کړ
دا مطلب مي راجوت په اشاره کړ
که يي درست د متو زور راته ښکاره کړ
بيا فلک سره کُشتي په خپل دستور کړم

---

(۱) "دارالايمان" هغه مخصوصه اصطلاح ده چي افغان سيد جمال الدين په د خپل خواږه وطن افغانستان لپاره استعمالوله .

(۲) مطلب څني احمد شاه بابا دے .

روس تعدی چې په افغان کړله منظوره
څو چې پایو اوس به جنګ کړو له ضروره
که مې مور په سرو روسانو نه کړه بوره
نه به بیا په غاړه کېږد م د ننګ توره
نه به بیا په قوم کښې کښېنم نه به هور کړم

روس وحشي نن راختلے په لېمو دے
قتل کړه د ټول افغان په پرګنو دے
زور او سپک مو د ایمان او د پښتو دے
عجب مار مې جار وتلے تر دوو پښو دے
مګر لوی پاړو پیدا شي چې یې دور کړم

څوک د حق څنګې دفاع کړي دلیر کېږي
تل غاور، د افغانانو اسیر کېږي
روسي بورې وراړې ډېرې په ویر کېږي
مست هاتیان، خونړي زمري په زنځیر کېږي
بویه دا چې ځان فلک وته تربور کړم

نیال د هیلو مې کړنځ شجر به وکا
بڼ په وینو شو خړوب ثمر به وکا
د افغان جهاد شو تود شرر به وکا
په خپل اه مې باورشته اثر به وکا
رقیبان به اور لړوني د تنور کړم

۱۵/۱۱/۱۹۸۶

۲۲ / ۱۲ / ۱۳۶۵

۶

هوښيار څه ؟ هر يو عمل به فرزانه کا
چې د خدایٔ رضا پکښې وی د ے هغه کا
په ښېګڼه اخرت لره توښــه کا
ښه سړے د چا په بد و نظر نه کا
که څوک بد ورسره کاندی د ے به ښه کا

د ممسک سړی ښه کار ته وځٔی وامې
د بل خير ته يې په خوله کښې وچې نامې
جود شېری لکــه نيوه د هــوا زامې
پــه بارداره وــنه تـل وربـږ ی کامې
ورته ګوره چې بــارداره ونــه څــه کا

د ښو برخه چې خدای هرچاته عطا کا
لوړبینه د ښېګڼې په هر چا کا
د اخلاص خونه د زړه هرچاته وا کا
د جهان کینې، غصې واړه ترشا کا
که سرې په وخت د قهر مرګ تر زړه کا

ښه هغه چې بد بیني ورځخه نشته
چې ښه خوی کړي خواشیني ورځنه نشته
په ښه کار کښې د لـــړزنې ورځنه نشته
دا په دا چې خودبیني ورځنه نشته
د جهان ننداره ې څکه د وه لېمه کا

ځان به ژغورې له وینا د بـــد و رد و
له صحبته د بدکاره و او مــرتد و
کتور شه لکه بوټی د کېنجد و
نصیحت د نیکو ښه دی نه د بد و
کم بختان به بدفعلی د چا په خوله کا

ته د بل په خیر بنا کړه هره چاره
لوربینه به سیده کړي د رته لاره
خدای د ښکو خلکو برخه مه کړه خواره
وسړي ته یې اختیار ورکړ هوښیاره
که په هره چار کښې خدای واړه خپل کړه کا

له آدمه تر دې دمه سلسلې دی
د تکوین تقاضې واړه پېښتې دی
د عمل زېرمې رښتیا د لارې ملې دی
ورځ او شپه په لار رواني قافلې دی
ښک وبد د قافلې په لاره تله کا

«چشتي» پوه شه ځان خبر کړه احواله
خپله بنه کړه له بل مه کړه استحصاله
لوربینه په انسان کړه خپل خصاله
یک تنها په لارې تلنه ده «خوشحاله!»
په دا هسې لار څوک څه د لارې مله کا

۱۳۶۵/۱۲/۲۴

۷

که په خوله نه، په کړه وړه خوراته وایې
ای د مینې سپېلنیه! ته د چا یې؟
زه په سرو سترګو د رځمه چې مې بیایې
که راضي مې په جفا او په وفا یې
نو راد رومه چې زه ستایم ته زما یې

که ته نه یې زما د ګلو ځولۍ تشه
بې له تا مې شپه او ورځ ده کله خوشه
د زړه سترګه مې د ستا خواته نیم کشه
بې له ما که جهان ستا شي په وربشه
چې زه ستا شم که وربشې خورې دا را یې

رابطه دې د شيطان له شره پرې کړه
پيوندونه بـرملا ورسره پرې کړه
بې اخلاصه تار له هرهنزه پرې کړه
که دې طمعه د مخلوق له وره پرې کړه
بادشاهي دې مبارک شه که ګدايې

که زه ګرد يم ستا د پاره په ګردون يم
خوشحالي نه پېژنمه، نه محزون يم
هواخواه د خپلې غوښتې په جنون يم
غاړې غړونه خبردار دې چې مجنون يم
که جهان په تا خبردے چې ليلا يې

ستا په خوا کښې که يم پروت په سودې پروت يم
ګرېوان څيرې لېونے ببردې پروت يم
که راګورې يو نظر په بر دې پروت يم
ستا د غم په توره مر په ورديپروت يم
کله کله راته ګوره مسيحا يې

ژړه ته وايمه د يار په طرف ربړده
په صحرا د عشق د يار لوري ته لېږده
نوري خواوې که هرڅه وی ته يې پرېږده
جګې جګې په لېمه مې قدم کښېږده
چې ړندې سترګې مې روغې شی توتيا يې

بې اخلاصه که د هرچا دلداری کړې
ناروا ده، ته غلط هم هوښياری کړې
ته له سمې لارې کوږ دې کامګاری کړې
چې له يار سره په خپل غرض ياری کړې
د ياری بلا په تا شه يار د چا يې

ستا چې لاره پرې راځي په لوکښې پروت يم
که ته برې خواته ځې، په بر کښې پروت يم
د غره سرته که راځې، په سرکښې پروت يم
په اميد دې د ديدن په ورکښې پروت يم
که ته هرڅو له «خوشحاله» بې پروا يې

۸

چې يار نه وي وايه چاته به کاته کړم
په ديدن د چا به چيرته زړګے بنسه کړم
سر به څوړنده د غم په زنګانه کړم
نور به مخ په آئينه برابر نه کړم
نه به د واړه ستوګې توري په رانجه کړم

نه به بيا لاړه جارو کړم د عزيزو
نه به بيا بلې ته ورشم په دريزو
نه به ناز کړم، نه به خيال وي د مکيزو
نه به سپين لاسونه سره کړم په نکريزو
نه به نور په ژمنځ ساز د سرو بښنته کړم

زه نن هسې غمزده شومه بې سیورې
تاج د سروی یار، خو زه شومه سرتورې
کمبودی مې بې حسابه شولې نورې
خود میني یار مې نشته چې یې ګورې
د صورت سنګار وکوم یوه ته وکړم

اندېښنې کړم غم په ما باندې پرېوزی
ګړابې د غم ده کښته ننوزی
اور د سرې دے دا غم له زړه نه وزی
د رست صورت مې سرې لمبې شي شنې دوزی
چې د خپل مین د مینې راز تر زړه کړم

څه چې زه احساسومه په نهان کښې
تول احساس مې نه راوځي په بیان کښې
همره وایمه ای خلقه! په عیان کښې
که ژوندون تر هرڅه خوږ دے په جهان کښې
اوس بې یاره په ما تریخ شوزه یې څه کړم

یو غمې وو ارزښتناک زلال دې اوسي

په عزت، په نهایت جلال دې اوسي

د ښایست په آخري کمال دې اوسي

هغه یار، چې چرته دے خوشحال، دې اوسي

دے دې خپله خوشحالي کړي غم به زه کړم

۲۴، ۱۲، ۱۳۶۵

٩

د جهاد په میدان کله چې خروش کړم

د ظالم د ظلم ورکې ته زه جوش کړم

ځان له غمه ډک او خوبن زړګې سرپوش کړم

هغه دم چې د ساقي نه پیاله نوش کړم

په مستۍ یې د واړه کونه فراموش کړم

له دښمن سره په جنګ کښې ملاقي یم

د سنګر تویک په لاس کښې اشراقي یم

د دښمن په بم ځلی یم باقي یم

په معنیٰ کښې هم شراب یم هم ساقي یم

طالبان د میو شته چې یې مدهوش کړم

د افغان د زړه لوخړه کافر لولي
دا وسله د د ښمن سر او تهمتن لولي
د ښمنۍ د د ښمنانو خنجر لولي
ناصحان راته د عقل د فتر لولي
خدای به نه کړي چې زه په ویل ګوش کړم

ملحدانو چې د روس راسره جنګ شو
نور به زه یم زما رزم د اورنګ شو
د افغان په رعب د توري جهان رنګ شو
د زاهد په صومعه کښې مې زړه تنګ شو
له دې پسه به خدمت د مې فروش کړم

هر یو وایو روح وطن او زه یې تن یم
مجاهد ته جامه وایي زه کفن یم
پیغله وایي زه قربان په دې وطن یم
زه بلبله خوشنوا د دې چمن یم
په موسم د ګلو څرنګه خاموش کړم

اوس جهان هم شو خبر زموږ له حاله
روس بايللې د ے عزت له دې وباله
د روس نه پريږي د و زموږ په ملک کښې حاله
چې په زړه يې اثر نه کېږي خوشحاله !
څه فايده چې تل په ورو ورته خروش کړم

۲۴/۱۲/۱۳۶۵

١٠

لکه زه پسې دوکمن یم، بل به نه وی دوکمن هسې
لکه زه پسې ژړن یم، بل به نه وی ژړن هسې
لکه زه پسې لچن یم، بل به نه وی لچن هسې
لکه زه په یار مین یم، بل به نه وی مین هسې
لکه زه پسې غمجن یم، بل به نه وی غمجن هسې

هم مې وشړی په خپله، هم وماوته سلا کا
هم کنځلې راته وکړی، هم مې ځان لره پخلا کا
زه ترهسې یار قربان شم، چې هم هاکوی هم دا کا
هم مې ووژنی په خپله هم په ما باندې ژړا کا
څه ښه یار دے، ښه یې مینه، وژل هسې، شیون هسې

توري زلفې يې شانه کړې، په مخ زانګې ولونه ولونه
تورې وروځې تورې سترګې، بر الا کوي قتلونه
هم سپين مخ لري د پر ښکلې، سرې يې شونډې د وه لعلونه
مخ يې د رست سره ګلزار دے، رنګارنګ لري ګلونه
تفرج د بهار ګوره ! پکښې نښته ګلشن هسې

له ازل په پېچ وتاب يم، خپل کاکل وته وګوره
په باغو په باغيچو کښې، بيا سنبل وته وګوره
پکښې زړه يم ځليدلے، هر يو ګل وته وګوره
زړه د اغدار غرقه په وينو، لاله ګل وته وګوره
هيڅ شهيد نه دے راوړے، له ازله کفن هسې

باد امې سترګې خمارې، د نرګس غوندې بيماره
له ښايسته له زينته، په چمن کښې نښته لاره
ښکارندوى د کاينا تو، زما برخه کړه بسياره
تورو زلفوته يې ګوره ! ښايسته د واړه رخساره
د جهان په مخ به نه وي، سنبل هسې سمن هسې

زړه مې ربړ دی چې خولې يې، په بارخو کله بهېږي
له هوا په بيم وترس يم، چې په زلفو يې چلېږي
له پستې مرغۍ په وېره، چې ترپښو يې لاندې کېږي
که د ګل پاڼې ښخت کړي، لا به هم باندې چخېږي
دا نازک بدن چې ستا دے، د چانه دے بدن هسې

چشتي وايي جواهر دی، د ادب دا ملغلرې
په خوږ والی لا خوږ دی، ته به وايې دی شکرې
څوک به وواي غزلې ؟ په دنيا تر دې بهترې
چې خوشحال ختک يې وايي، په پښتو ژبه خبرې
په فارسي ژبه به نه وي، که پوهېږې سخن هسې

۲۹ ، ۱۲ ، ۱۳۶۵

افغانی کمونستانو ته :

١١

ای د ځان دښمنه ! واړو ته لیدلي
له صیاد سره به پټ پټ ژغیدلي
په درواغو شعارونو غولیدلي
تر دا دووسترګو مي اوښکي بهیدلي
په فراق کښي ترلمني څڅیدلي

څوڅو واره مي بیدارشه ناره وکړه
له دښمن نه برکنارشه چاره وکړه
چي غلام شوي اوښکو زما فواره وکړه
ستا په غم کښي مي د زړه ننداره وکړه
پکښي واره سري لمبي وي بلیدلي

دید دې خپلو ته په سترګو د اغیار کړې
لیونۍ شوې په خپل سر دې کښ اسفار کړې
خپل عزیز ملت دې ټول په زړه افګار کړې
زه نه ګرم، نه ملامت، نه مې څوک یار کړې
ته په کوم توکي دا هسې قهریدلې

د پوړي، جامو او کور دعوی دې بس کړه
ارمانجن وې خپل زړګے دې اوس بسه تس کړه
سره سوچه طلا بدله تا په جس کړه
اوس دې یار په غیر کښې وینه هوس کړه
چې یې پیر په بیلتانه کښې رنځیدلې

ستا لغزش هومره بلاوې کړې رالېږې
لوږه، تنده، مرګ و میر ګوره لا چېږې
ستا کردې د زمانې نه دی لا هېرې
څکه تل د باد له لاسه خورې څپېړې
چې له قد سره د سروې سمبدلې

د مارکسیزم ، لېننیزم اقتصاده
د پردو د قلمرو د غه هوا ده
پلاړ او نیکه واړه ملت نن نیمخوا ده
اوس یې جور و جفا وړه د غه سزا ده
فکر وکړه چې په چا مین کېدلې

په «داؤد» چې خونه ګډه شوه لېده دې
د «تره کی» ساه تربته شوه لېده دې
په «امین» بیا ګډه وډه شوه لېده دې
د رقیب چې ګونه بده شوه لېده دې
چې ومانه په هوله کښې موسېدلې

هرچا کور ، پُله د ښمن له ره مرچل کړ
په غزا او شهادت یې ځان تسل کړ
زوړ که ځوان وو د دښمن اورجل وبل کړ
په زړه یاد لره د اور چې دې رابل کړ
یو ترشا نظر دې نه کړ تېرېدلې

حوادث خو وی سیّاله لکه عمر

«چشتی» تېر به شی فی الحاله لکه عمر

د روس زور شه هم زواله لکه عمر

چې په تلل شوې له «خوشحاله» لکه عمر

که یې د پره بلا کړه نه د ریدلې

۱۳۶۶/۱/۱

۴/۱/۱۳۶۶

## ۱۲

که زه نه وے تاخو نه پیدا کول څوک
نیابت لره دې خپله ومنل څوک
ستا د حسن راز به زده کا ول په ول څوک
که زه نه وے تا به ځان لره بلل څوک
په پالنګ به دې د اهسې درختل څوک

هغه خاص پیوند د ذات چې زړه آګاه کړ
برومند دے که فقیر وی که یې شاه کړ
په هستئ کښې یې د ده قدرت پناه کړ
واړه عشق دے چې یې سر راته ګیاه کړ
ګنه زه په ځان مین او سر ښندل څوک

د تکوین که مرتبت ږاسره نه وے
د خپل ځان به بیا عزت ږاسره نه وے
له تقدیره که قوت ږاسره نه وے
بد رنګه که محبت ږاسره نه وے
یک تنها به په خونخوارې لارې تلل څوک

د اسرارو غنچې ډېرو دی پرانستی
د فترونه د بنو، بدو دی چا لوستی
د عشاقو طومارونه دی نالوستی
د دې میو پیالې ډېرو دی اخیستی
ولې ما غوندې به نه وی لایعقل څوک

ما د تامینه منلې وه له ځایه
زه په مینه په سلام یمه له ورایه
غواړم تل د تا رضا او د تا رایه
ته په خپله راته وواېې چې وایه
کنه زه د مینې راز ښکاره کول څوک

څه دې زړه غواړي کوه هيڅ صرفه مه کړه
که په اور که په اوبو شوم غصه مه کړه
که ترل کړې که وهل کړې چوسه مه کړه
ته مې وژنه د قصاص اند یښنه مه کړه
د خپل خون په توربه ونیسم یو بل څوک

سین هغه د ے څواوبه پکښې بهیږی
پُل هغه د ے چې پې څوک پرسرتیریږی
ښک هغه وی چې پې ښه په چا لوریږی
ښه خوداوی چې پې نوم پکښې یادیږی
په فانی دنیا به نه وی ژوندے تل څوک

"چشتی" سبک دې د عرفان مشال ته ورکړه
اوبه خور ښه د طوبا نهال ته ورکړه
څه لمحه دې د عاشق وصال ته ورکړه
تا په خپله سپینه خوله خوشحال ته ورکړه
کنه د ے د اهسې شونډې کښلول څوک

۵/ ۳/ ۱۹۸۷

۱۳

عشق بې لورې، بنکته، پورته، په څنګ نه ده
د مینو مینتوب دې په رنګ نه ده
د عشق ورکړه په نوکانو، په چنګ نه ده
د عشق برخه ازلي ده، په جنګ نه ده
په کتاب، په مسئلو، په فرهنګ نه ده

هرچا برخه له اوله ده راوړې
زړه بې ظرف د ے هم بې تله ده راوړې
بل ځای نشته چاله بله ده راوړې
په قسمت بې له ازله ده راوړې
دا د سولو برخه اوس د پتنګ نه ده

څه عجیبې اشارې یې د یارۍ کړې
رابطې د خپل خپلوانو یې نوې کړې
تیرې تورې یې د ښکلیو په مرۍ کړې
خلقې یې سړې د رغنې ککرۍ کړې
لا د مستۍ د غمزې توره رنګ نه ده

د هستۍ د وسعت ټخنبې پکښې ګوره
د انسان د عزت غنبې پکښې ګوره
د خپل ځان د همت غنبې پکښې ګوره
تل د یار د صورت ټخنبې پکښې ګوره
که د ننه آئینه د زړه زنګ نه ده

مزل کړمه نه په هسکه، نه په پست یم
خلقه مې ګرموی حسن پرست یم
په همدې لاره روان زه له "الست" یم
د ا پیاله چې ما نوشلې ده پرې مست یم
د ا پیاله مې د شرابو د بنګ نه ده

خپل خوی خپل کړه، خوی او ژواک پردی بښه نه دی
د پردو په لاره تګ او تلے ښه نه دے
له مسلم سره ملحد او بد ے ښه نه دے
له اغیار سره یو دم ناستے ښه نه دے
هیڅ خپلوی مې د زجاج او د سنګ نه ده

د افغان بچی غورځنجه چې وار په وار شول
د اغیارو سوځوله ته انکار شول
سخ د هغو چې تر خپلې مینې ځار شول
د ګلونو په موسم کښې هغه خوار شول
چې ګلرنګه معشوقه یې تر ځنګ نه ده

لوی خدایه! ذهن او کړه زمونږ بهتر کړه
ما "چشتی" په غلیمانو باندې بر کړه
بریالی ټول مجاهد افغان ټبر کړه
کله کله خوار "خوشحال" وته نظر کړه
د عاشق نمځنه هیڅ عیب و ننګ نه ده

۱۴

مه وایه پتنګ ته چې يې ته ولې پتنګ کړې
نه وایمه ښکلی ته چې ته چاشوخ وشنګ کړې
حسن د یوسف په تماشوګوټې بادرنګ کړې
زه خو شرابی یم شیخه ته راسره جنګ کړې
برخې ازلی دی کشکې ما دځان په رنګ کړې

هسې هم غنیان چې په جیبوکښې یې زر نه وو
سوزنده تودوخه په ښکاره یې شرر نه وو
ورسید منزل ته که بلد په سفر نه وو
ولاړل وجنت چې په پوهه خبر نه وو
لاړل و دوزخ ته چې یې لاڼې د فرهنګ کړې

زه مکه یې شوره وه په بهار کښې ګلزار نه شه
خوب نه وو غفلت وو چې تر پایه بیدار نه شه
نورو ته حکم وو دے په خپله هوښیار نه شه
پند د محمدؐ د ابوجهل په کار نه شه
څوک به ئې صیقل کا چې یې خدایٔ آئینې زنګ کړې

د خلکو خدمت غواړمه زود، زود یې راته وایه
پرزو مې په انسان شی څه کمبود یې راته وایه
نیمګړې یې زه اشیه او بهبود یې راته وایه
کښېنې په خلوت کښې شیخه سود یې راته وایه
ولې په خپل ځان د اهسې ارت جهان تنګ کړې

زه د عشق نبرد غواړم په هریوه مذهب کښې
ښه سپیڅلے مرد غواړم په هریوه مذهب کښې
زېږمه د فرد، فرد غواړم په هریوه مذهب کښې
زه خود زړه درد غواړم په هریوه مذهب کښې
تا زده، ستا خبرې چې نقلونه رنګارنګ کړې

پورته د جهاد تکبیر افغانه دلنواز کړه
ټول وطن سنګر دے کاري وار دے دل ګداز کړه
زه یم مضطرب جلوه د حسن وکړه ساز کړه
را پښه مطربه د نوروز سرود آغاز کړه
ښې نغمې زړه سوزې په رباب په نَی وچنګ کړې

ښه زرغون چمن دے، ځوانان وړه وړه د هر ګل دی
پېغلې دی مستی کړی، ګلان اېښي په کاکُل دی
هرخوا شین توتیان دی، عندلیب دے اوبلبل دی
هر لوری ته ګل دے، شقایق، نرګس، سنبل دی
بې ګلزاره بد، که وبل لوری ته آهنګ کړې

ډېرو د زړه پټې غوټې پرانستې ادب کا
پاس د لاره ښوونې د مذهب وجب وجب کا
کوږ خوبه نه، هېڅکله له دې لارې جلب کا
چادرېسې ډېرې توښې واخیستې طلب کا
ځینو مصلّې د بې ننګه درپسې لنګ کړې

ټول افغانستان ته ملحدی لښکرې راغلې

پښتې په فولادو سرې وحشی لښکرې راغلې

اوس "چشتي" جهاد کړه چې روسی لښکرې راغلې

مرګ لره یې واړه د دهلی لښکرې راغلې

ته لا د "خوشحال" په مرګ ځان روغ نه کړې ننګ کړې

۵ ، ۱ ، ۱۳٦٦

۱۵

ځمکه چورلي که څوک وخاندي که ژاړي
تغیّر د کایناتو کوي ژباړې
په هرچا پسې یې ټک وهلې تاړې
څو بېړۍ په د اسیند کښې ډوبې ولاړې
چې تخته یې موندے نه شي کېږې غواړې

هر سړی ژوند ته باغچې دي لګولي
د امید ونې یې بنې دي لګولي
خواغیار پسې پلټې دي لګولي
فراق هرڅه ته لمبې دي لګولي
لکه لوند لرګے په اوراینې څو ژاړې

دا جهان د مکافات دے ای نېک رایه!
خپل عمل د لاړې مـل دے ورته وایه
د بدانو برخه خواره ده له ورایه
غم بنادی سره تړلی دی له ځایه
هغه همېره به وژاړې څو ویاړې

ژوند یو داسې تجارت دے کوه وړیا دی
لوړېدنه او سمون پکښې والا دی
مال او ملک خاص وسایل د ابتلا دی
چا یې نوم راته وا نخېست چې دچا دی
منارې مې وېرې ولیدې ولاړې

په نړۍ کښې که توانمن شته هم ناتوان شته
ژوند کښې هردم چانس دګټې او تاوان شته
که بنه ځیر شې سرترپایه امتحان شته
په هزار رنګه غمونه د جهان شته
ته په زر رنګه ناړې واوره دخراړې

لاړه د عمر سپلرم دشت د ے اوکه کورد ے
په اوږد والی حرکت کړم که په پسور د ے
د ژوندون بساط مرموزه راته خور د ے
لکه رای نه ما د زړه هغه لا نور د ے
خلک څوخبرې کاندی غاړې غاړې

لاس وپښې کړه د زمان توسن که رام شی
ما د هیلو بې لېدلے پوخ وی خام شی
خپله سعیه درته غولے شی،هم بام شی
دا طومار څه هسې نه دے چې تمام شی
غوروی یې ، پټوی یې ، لولی ، نغاړی

د بښېګنې هره برخه ارزنده ده
خوله په خپله لاره هرچا ته لنده ده
دا خبره د هوښیارو آزموده ده
دین ، دنیا لره پکار خپله کرده ده
لوند وی حلق د هر سړی په خپلې لاړې

"چشتي" څه رنګه درانه دي نه يې اوري

نه پوهيږم دوی په څه دي نه يې اوري

صم" مه شه پښتانه دي نه يې اوري

غافلان په غوږ کاڼه دي نه يې اوري

د"خوشحال" ختک د خولې خبرې لواړې

۲٦ / ۳ / ۱۹۸۷

١٦



یار په زړه او سترګو کښې لره خوله کړه بسته
څوک چې د غه کار کوي هغه وي وارسته
د رېغه واړه مه شه د ښادۍ پوچه پسته
هیڅ خبره نه وه چې به ما تر خولې ایسته
ستا د خولې تشبیه مې غوټۍ ولې ړاوسته

مینه ده، ښکلا ده، زړه او ته سره موزون یو
ولې به په خپلوازلي برخو محزون یو
هیله د وصال ده، له بېلتونه په لړزون یو
زه او ته په دا دور، تر واړو نه افزون یو
څه حیران مجنون وو، څه لیلا خواره خسته

ښووه، د شبنم څاڅکي ملغلرې په وښو کښې
ښکاري د لاله ګل او خاتول په پوره نښو کښې
ښه ښکلې موسم، ور-ور ګلان دي په ورشو کښې
ستا د تورو زلفو زنځیروته دي په پښو کښې
نه شم چېرته تللې، درته پروت یم پا بسته

فکر مې بوړا غوندې په تاندو زړګو ګرځي
ورکه مرغکۍ ده په صحرا په درګو ګرځي
کله ګلستان، کله چمن په غونچکو ګرځي
هر زمان ستا خیال دے چې زما په سترګو ګرځي
وېښ یم، که ویده یم، که ولاړ، که نشسته

زما د سترګو کسیه ! پکښې ګل مه شې په عمر
اور د عشق ته وایم بل شه ګل مه شې په عمر
بل څراغ خندان بې یاره ګل مه شې په عمر
ګل اوسې په حسن اما ګل مه شې په عمر
راغله سرفراز شوم ستا له باغه ګلدسته

څه چې ښکلیتوب او وجاهت دے ستا په مخ کښې
مخ کښې د خدای نور وی، شرافت دے ستا په مخ کښې
څه ښکلې پاکی او نظافت دے ستا په مخ کښې
واړه هغه حسن، لطافت دے ستا په مخ کښې
چا چې د یوسفؑ قصه ومانته ولوسته

زخمی زړه ته راغلی مېلمانه دی تېره غشی
د سترګو په مژو چاپېر پراته دی تېره غشی
راټول کړه په کور د پښتانه دی تېره غشی
وروځې دې لېندې دی، تور باڼه دی تېره غشی
وله صرفه مه کړه چې دې ډکه ده درسته

غم دې یکښې لوغړی د اچشتی" دګې وروست نه شو
زما ځای خوغږنی دے، که ځان دل کړمه خوست نه شو
سل ځله قربان شو تا نه، تا لره دوست نه شو
زړه لرې د کامی په "خوشحال" باندې پوست نه شو
څه شوکه د خولې خبره کړې چېرې پسته

۱۷

وار یې خطا مه شه، ګوري وار لره کنه
زړه مې ورته غښته ده، دلدار لره کنه
څیر شه په تکوین کښې دغه تار لره کنه
توره چې تېرېږي خو ګذار لره کنه
زلفې چې ول ول شي خوخپل یار لره کنه

مه وایه ناصحه! په سپېڅلیو نظر مه کړه
ستا ښایست څلیو په پرتلیو نظر مه کړه
مینه کښې په هغو زړه بایللیو نظر مه کړه
ولې راته وایې چې په ښکلیو نظر مه کړه
سترګې چې پیدا دي خو دیدار لره کنه

خدایٔ به بیا بوزه کا، زه به ډکې پیالې اخلم
دوی دې ستړزه کا، زه به ډکې پیالې اخلم
نور دې درویزه کا، زه به ډکې پیالې اخلم
شیخ دې نمونځ، روژه کا، زه به ډکې پیالې اخلم
هر سړے پیدا دے، خپل خپل کار لره کنه

مخ دې پتاسه ده، پتاسه ماته دارو ده
یار که مې غصه دے، دا غصه ماته دارو ده
بیا په دلاسه دے، دلاسه ماته دارو ده
تاوې چې زما د خولې بوسه لکه دارو ده
غواړم دا دارو، د زړه پرهار لره کنه

عشقه! ما به وخورې، مګر نور څه لره نه دے
اور غونډې هر څه خورې، مګر نور څه لره نه دے
زړه او دوه لیمه خورې، مګر نور څه لره نه دے
وینې مې د زړه خورې، مګر نور څه لره نه دے
زړه زما پیدا دے، تا خونخوار لره کنه

خیال ته مې ستا حسن د بادشاه غوندې څرګند شي
اخلې مې اخلاص چې عالیجاه غوندې څرګند شي
روڼ شي او د پر روڼ شي چې د ماه غوندې څرګند شي
خود به ستا تر مخه د ګیاه غوندې څرګند شي
ګل د لاله راوړه خپل رخسار لـــره کنه

واوره چشتی سم شه ! له تقدیر سره فی الحاله
بزم د تکوین دې د لید لود ے هـــر حـــاله
څه چې تا ته رسی هغه مه کښه محـــاله
مې شته، چنګ و نې شته د خپل یار سره خوشحاله !
خپل بیاض په لاس کښې څه ګلزار لره کنه

۲۴ / ۴ / ۱۹۸۷

## ١٨

خدایٔ ته وګوره! زما په لوري مخ کړه
ښه مضبوط زما اوستا د یارۍ نخ کړه
چې مې ووژنې په وا زه خوله ښخ ښخ کړه
تا وژلي هم له خیله لاسه ښخ کړه
که دې زړه باندې یخ زړه پرې یخ کړه

عاشقان دې سپیلنی دي په کوڅه کښې
ټول په تا پسې رهي دي په کوڅه کښې
ور، ور نور هم ګریځي دي په کوڅه کښې
رقیبان دې لکه سپي دې په کوڅه کښې
چې انګړ دې پاکیزه شي وار ه چخ کړه

ښایسته جامې مې نورو ته ښځښلې
د خوشۍ نغمې مې نورو ته ښځښلې
د بوستان وږمې مې نورو ته ښځښلې
د جنت مېوې مې نورو ته ښځښلې
که ګټې نه ما په خوله سبب زنځ کړه

د یار مینه په عیان او په نهان کښې
سوز و ساز مې څرګند پرې په بیان کښې
یک تنها یمه په د غه لوی جهان کښې
هغه وار مهیا دی په هجران کښې
چې واعظ و ماته شرحه د دوزخ کړه

عشق بې لوری دے بالا او پائین نه دے
د فطرت ښځښلو رښتین دے خاین نه دے
ځان د غوښې دے اشنا پولادین نه دے
که پرواز دې د شهباز او شاهین نه دے
د مطلوب په لوری پروونه دملخ کړه

دا دنیا چې زه یې پوه شومه له حاله
محبت چې پکښې نه وي دے وباله
ما "چشتي" ته دغه غوره شوه فی الحاله
چې دې قدر د وصال نه وو "خوشحاله!"
په فراق د ښو یارانو اوس آوخ کړه

۲۴ / ۴ / ۱۹۸۷

۱۹

د راتلو به مصلحت وي که به نه وي
د دیدار به اجازت وي که به نه وي
ستا به تل ماته رغبت وي که به نه وي
ساقي تل به دې داست وي که به نه وي
له جهانه به مهلت وي که به نه وي

د مطرب د نغمې ولونه پیچ وتاب کړه
روحنوازه نغمه پورته له رباب کړه
د عشاقو زړونه وویاړه کباب کړه
راشه ډک د میو جام په مئ ناب کړه
تل به هسې فراغت وي که به نه وي

یارته وګوره تریٔ ځارشه فراغت دے
که یې عشق په زړه وخوړم شجاعت دے
برخه اخله له تقدیره دا مهلت دے
هر هوس چې د صورت کړې دا ساعت دے
ګوره ګانده به صورت وی که به نه وی

دین دنیا کښې په تا پایمه حبیبه!
تا په مینه کښې نیولے یم عجیبه
د غه سخته معما ده ړه غریبه
په رښتیا وما ته ووایه طبیبه!
چې د رنځ به مې صحت وی که به نه وی

نردبان د عشق مقام ته ارجمند دے
له ازله تر ابده دا پیوند دے
زلفې ولونه، ولونه څه ښکلے کمند دے
د وصال وعده دې وکړه ستا سوګند دے
په دا کار کښې به غفلت وی که به نه وی

که زړه پوهه د تقدیر په فیصلې شم
هم هغه ساعت به ځان ته تسلې شم
چې صاحب د مقدسې حوصلې شم
که په تا پسې ملنګ د مصلې شم
شاه په تا به مې قیمت وی که به نه وی

راشه ! زړه له اړ مانو نوځنې تش کړم
د جهان هوا هوس ته پرده کش کړم
بیا "چشتی" د یار کوڅې ته هسې رش کړم
سپینه خوله که بې ربیاره ورپیشکش کړم
په "خوشحال" به مې منت وی که به نه وی

۲۵، ۴، ۱۹۸۷

۲۰

یادته به دي خوله په ګلاب ولمه، ولمه، ولم
خوب وخیال کښې ستا مورتزه کښمه، کښمه، کښم
شیخ او محتسب ته که یم ګرمه، ګرمه، ګرم
مست یم، مئ پرست یم رندی کړمه، کړمه، کړم
واوره محتسبه! باده خورمه، خورمه، خورم

پرېږده پرهار ونه مې ملهم وته بخښنلی
مست مست توفانونه مې جېلم وته بخښنلی
مال، نعمت او ورکړه مې لوی لم وته بخښنلی
نور شراب مې واړه نور عالم وته بخښنلی
«لام» و «بې» مې مئ د ی پسې مرمه، مرمه، مرم

بزم د یارۍ ته له ازله زه شوقي يم
عشق دے چې هرڅه راباندې کاندي زه عشقي يم
کش د ده له لورې بې اختياره اشراقي يم
موړ به څنې نه شم زه د ميو مستسقي يم
تل که هسې ډکې پيالې ځښمه، ځښمه، ځښم

ما سره يو زړه وو ورمې کړ خجالت نه يم
مخ که د يار ستايم خلقه! هيڅ ملامت نه يم
بې له مينې هيڅ زه د بل رنګ عبادت نه يم
لاړ د محبت ده تل به روغ سلامت نه يم
زه چې په دا هسې لارې تلمه، تلمه، تلم

سوز و ساز د زړه کله ځايږي په بيان کښې
عشق دے چې هرڅوک يې رسوا کړے په جهان کښې
پټ د زړه اسرار ويلے نه شم په عيان کښې
څه وايې وماته؟ حال دې څه وو؟ په هجران کښې
نور خبر دار نه يم خلقه سومه، سومه، سوم

یار مې راته ووې چې په مینه کښې صادق شوې
لا رد محبت ته له ازله ته شایق شوې
اوس مې سوځولو، کړولو ته لایق شوې
خلق راته وایي رنګ دې بیا ژېړ شو عاشق شوې
هیڅ منکري نه کړم خلقه! شومه، شومه، شوم

عشق دے "چشتي" د غم چې بار ونه د تهمت وړي
زه به یې نترې ځار کړم که مې سر وړي که ثروت وړي
عشق خپله عزت دے خلقه چا وې چې عزت وړي!؟
دود د عاشق دا دے چې په عشق کښې ملامت وړي
ځکه زه "خوشحال" ملامت وړمه، وړمه، وړم

۱۳۶۶/۲/۲۲



چې کشور د افغانانو معطر کا

د هر بیت مصراع مې زلفې د خوبان کړې

"رحمان بابا"

۱، ۱۱، ۱۹۸۷

# حمد

۱

هم غفور دے هم غفار دے رب زما
سرکشانو ته قهار دے رب زما
هم بخښونکے هم ستار دے رب زما
ګوره هسې کردګار دے رب زما
چې صاحب د کل اختیار دے رب زما

د ملکونو بادشاهان چې څوک یې وایي
د پوځونو سرداران چې څوک یې وایي
د مالونو مالکان چې څوک یې وایي
همګي بزرګواران چې څوک یې وایي
تر همه و بزرګوار دے رب زما

اراده يې صنعتي صورت پيدا کړ
د هر څيز يې طبيعي صورت پيدا کړ
څه ښايسته يې قدرتي صورت پيدا کړ
له نيستۍ يې د هستۍ صورت پيدا کړ
هسې رنګ پروردګار دے رب زما

هم خالق دے د جمله وُ مخلوقاتو
جوړوونکے د جمله وُ طبقاتو
دے لايق دے د جمله وُ ښو صفاتو
هم صانع دے د جمله وُ مصنوعاتو
هم سامع د هر ګفتار دے رب زما

ابدي دے نه تغير نه يې زوال شته
څه چې غواړي کله ده له ره وبال شته
په باغونو کښې يې خوشبو عجب نهال شته
چې يې هيڅ رې نه مثل نه مثال شته
د هغو عطرو عطار دے رب زما

اسمان گورې چې د زمکې نه بالا دے
ړک له ستورو ځنې هسې خوشنا دے
فکر وکړه دا صنعت واړه د چا دے؟
هر تعمیر چې د دنیا او د عقبا دے
د همه واړو معمار دے رب زما

نه محتاج مو د قیام او د سجدو دے
خو راضې په بندګې او ښو خویو دے
چې خبر مو له کردار او له ذهنو دے
خوانده د نانویسو صحیفو دے
دانندہ د هر اسرار دے رب زما

که ودان دے، که شوک خوار، وربانديي دین دے
بیا په هر لورې روان او په کوم لین دے
که په ملک کښې د مسکو یا د غزنین دے
که ظاهر دے، که باطن دے، که مابین دے
له همه و خبردار دے رب زما

په رودونو او بحرونو اوکه شط دے
په سیسیو، مرغابیو اوکه بط دے
په نقاطو اوکنجونو اوکه خط دے
که پیدا، که پوشیده دے، که اوسط دے
د همه وُ وقوف دار دے رب زما

نیازمند کله دے د هیچا همکارۍ ته
نه محتاج دے د هیچا هوښیارۍ ته
هم مالک دے، هم حامي دے ملک دارۍ ته
حاجت نه لري د هیچا و یارۍ ته
له هغو سره چې یار دے رب زما

"چشتي" واوره خدای ته تل لوله سبحانه
دے قایم دے په لکونو کهکشانه
هرڅه کړے شي ده ته هیڅ کار نه دے ګرانه
هیڅ تغیر او تبدیل نه لري "رحمانه"!
تل ترتله برقرار دے رب زما

۳۰/۱۰/۱۹۸۶

۲

خدایُ بدیع دے د دې زمکې او سما
دے خښتن دے د مادې او د معنا
د کونینو تر جوړښته لا پخوا
که صورت د محمدٌ نه وے پیدا
پیدا کړې به خدایُ نه وه دا دنیا

ټول انسان د محمدٌ په روی پیدا شه
سود وزیان د محمدٌ په روی پیدا شه
امتحان د محمدٌ په روی پیدا شه
کل جهان د محمدٌ په روی پیدا شه
محمدٌ دے د تمام جهان آبا

مهربان پرې ذالجلال والاکرام شه
محمّدؐ د خدایؑ په ذکر صبح وشام شه
د همهٔ انبیاؤ بیا امام شه
نبوّت په محمّدؐ باندې تمام شه
نشته پس له محمّدهؐ انبیـــاء

واقعه تولِه په علم د سبحان کښې
عرش، کرسی، لوح وقلم په دې بیان کښې
زه به څه وایم په دې کون ومکان کښې
نورهاله د محمّدؐ وو په جهان کښې
چې بوی نه وو د آدمؑ او د حـــوا

په تکوین کښې که خاورین دی پیدا شوی
دی له موره په زمین دی پیدا شوی
له همهٔ بهترین دی پیدا شوی
په صورت که آخرین دی پیدا شوی
په معنیٰ کښې اولین دی له هر چا

ګل ګلاب په باغ کښې دہ تہ په خندہ دے
په دہ ویاړی پوېنده که پرنده د ے
په خلقت کښې عشق په دہ باندې زندہ دے
خدای یې مه ګڼه بې شکه چې بنده د ے
نور یې کل واړہ صفات دی په رښتیا

زہ ترې ځارشم محمّدؐ څه نورانی د ے
لوی رحمت د خیر په لوری یزدانی د ے
د ژوندون د سعادت جوت بانی د ے
که نبیؐ دے، که ولی دے، که عامی دے
محمّدؐ د ے د همه واړو پېشوا

خدای په خپله دې جهان ته رسول کړے
تول قرآن یې بیا په دہ رانازل کړے
تر قیامته یې جهان ته مقبول کړے
چې یې دین د محمد دے قبول کړے
جنتی دے، که فاسق دے، که پارسا

محمّدؐ د انبیاؤ مقتدا دے
محمّدؐ د عام و خاصو پیشوا دے
محمّدؐ د مومنانو بنه مولا دے
محمّدؐ د گمرهانو رهنما دے
محمّدؐ دے د رندو د لاس عصا

که یاری غواړې یاری د محمّدؐ ده
سعادت هم هوشیاري د محمّدؐ ده
سمه لاره همرهي د محمّدؐ ده
که رښا ده پیروي د محمّدؐ ده
گنه نشته په جهان بله رښا

محمّدؐ په دواړه کونو کښې سرور دے
محمّدؐ د خدای رښتونے پیغمبر دے
محمّدؐ د امتونو لوی رهبر دے
محمّدؐ د بې چاره وُ چاره گر دے
محمّدؐ د ے هر دردمند لره دوا

هرچا وویل چې زه به یې خاکروب یم
"چشتي" ویاړي کوندي زه به یې خاکروب یم
خدای نه زه د محمد په مخ په روب یم
زه رحمان د محمد د در خاکروب یم
که مې خدای نه کا له دې دره جدا

۳

چې مې کوټ کړه پیاله ستاله ځے ناب
په توبو توبو کښې ما مونده ثواب
زه يې هسې دېوانه کړمه خراب
لاس مې وتړی د زلفو په طناب
بیا مې وسپاری د سترګو په قصاب

زه که هرڅو ورته ټيټ شومه له نیازه
ماته کله شوه د ده د دروازه وازه
په هر لوری يې ښایست کړی ترک وتازه
چې توسن د فلک زین کاندی له نازه
د اهلال يې په ځای راشی د رکاب

د جلوو وارې يې هسې وار په وار دی
دا غمونه چې زما په سر انبار دی
نور غمونه لا هم ما ته انتظار دی
چې په ياد کښې مې سرې شونډې سپين رخسار دی
له چشمانو مې بهېږي سره شهاب

زړه به څوک له خپله ياره برابر کړم
نشته بل چې يې مثال د خپل دلبر کړم
ناګزير يمه د زړه کُنجې به ور کړم
چې د مخ و آب و تاب ته يې نظر کړم
راته هيڅ شی د ګلونو آب و تاب

يار را ياد شی زړه مې هله په سودا شی
تل زړه غواړی خپل اشنا که راته راشی
په غمو يې هم يوځه زړه تسلا شی
چې نسيم يې د زلفينو را پيدا شی
درست مې ډوب کاندی په مشک و په ګلاب

د یارۍ ادب مې وو په ورکتوب کښې
څو راځوانه شوه یارۍ په زلمیتوب کښې
معشوقه خووی هرچالره په روب کښې
ما وې مخ یې ګوندې وویینم په خوب کښې
بارې چېرې شی بې یاره خورد وخواب

نه هرخم چې د شراب وی مې ناب وی
نه د هر تندی د پاسه به محراب وی
په سیخونو کښې هم ځینې د کباب وی
په غزل کښې خو دوه بیته انتخاب وی
د «رحمان» تمام غزل وی انتخاب

۲۰/۱۰/۱۹۸۶

۴

د جانان په طلب هسې صبح وشام شه
له مجنون سره اوږه اوکام په کام شه
عشق عالی دے وبرلورته په خرام شه
پاڅه یوځلې سیراَب دعشق په جام شه
په ساغرد ماه ومهرمے آشام شه

د غفلت نتیجه کوره بربادی وی
د بدانو په نصیب نامرادی وی
چې تسلیم شې خدائ ته هله به ښادی وی
له اوله بندگی بیا آزادی وی
که مقصود د ازادی لرې غلام شه

زړه د ځان په څنګه ښځ کړه لکه تخم
خپل ارمان په څنګه ښځ کړه لکه تخم
سبک اوتوان په څنګه ښځ کړه لکه تخم
ژوندے ځان په څنګه ښځ کړه لکه تخم
که لویی غواړې د خاورو په مقام شه

د خلوص او پیوستی مرتبه ګوره
د دې لارې د مستی مرتبه ګوره
له ادبه تل وروستی مرتبه ګوره
په نیستی کښې د هستی مرتبه ګوره
نند ارچی په ویرانه کښې د خپل بام شه

غوره هرچاته ژوندون په خپله رایه
څوک یار غواړی شی بهرله خپله ځایه
ځان په ښه عمل له ورایه خپله ښایه
و د ښمن وته خپل حال په خپله وایه
ځان پخوا تر مرګه ووژنه مدام شه

پیوستون په یارانه کښې ځانته چل دی
د اوبدې ځانته غوټه، ځانته ول دی
که ږه بنه کومه یار راسره مل دی
په مستانو کښې د عقل ځښتن غل دی
که په نورو خلقو خاص یې دلته عام شه

د اشنا د رو ښتلو ژبه زده کړه
د جانان د راکتلو ژبه زده کړه
"چشتي" واوره! د غزلو ژبه زده کړه
ای "رحمانه!" د بلبلو ژبه زده کړه
د غه پسه په صفت د ګل اندام شه

۲۶/۱۰/۱۹۸۶

مشوره

۱۹۸۶/۴/۴ — مهاجره

۵

په نامه دي پاکه ربه ابتدا کړم
د افغان اولس غلامون سوال په لهٔ تا کړم
د مسلم افغان ښېګڼه تمنا کړم
صبح وشام مې لاس نيولی دی دوعا کړم
خواست له خدايه ستا د مهر و د وفا کړم

په جنګرېز کښې پښتنو کله شا ورکړې
ای افغانه! وينې، وينو چې تا ورکړې
بې له خدايه فتحې چاوته چا ورکړې
هيڅ دروغ، رښتيا مې نه زده که باور کړې
ستا د پاره هم دروغ کړم هم رښتيا کړم

لويه خدايه ! له تا ځار شم ازمول کړي
د نېکانو هم په سمه لار بېول کړي
فرعونيان هم له لويۍ را ټيټول کړي
واړه ته يې خندول کـه ژړول کړي
زه په خپله نه خندا کړم نه ژړا کړم

روسان سپک شول هيڅ درانه په زمکه نشته
امن، امان د پښتانه په زمکه نشته
ژوند او ښکـه د شپانه په زمکه نشته
خوب، خندا د بېلتانه په زمکه نشته
څه آرام به په دا دشت کربلا کړم

د جهاد په شنو لوخړو، په تورتم کښې
د ځبليو، سوځېدليو په ماتم کښې
يتيمان، کونډې پراته سترګې په نم کښې
هره ورځ چې مې تېرېږي ستا په غم کښې
زه په هره ورځ پوهېږم چې غزا کړم

چې مې خوی د مناعت کوږ شوے نه دے
هغه نیت مې د همت کوږ شوے نه دے
لا تراوسه مې خصلت کوږ شوے نه دے
یو وېښته مې د صورت کوږ شوے نه دے
هسې رنګ دې پټ پنهم په زړه ادا کړم

اشنا ووې ما زړه تاله دے درکړے
ماهم ووې ما زړه تاله دے درکړے
زړه مې ووې دا یې تاله دے درکړے
زړه که یو وی ما خو تاله دے درکړے
مګر نور و لره نور زړونه پیدا کړم

را په سر مې شوه سودا د عاشقۍ
په ما جوړه ده غوغا د عاشقۍ
«چشتی» واوره ته وینا د عاشقۍ
چې مې واغوست سرو پا د عاشقۍ
زه «رحمان» دې سرو پا بې سرو پا کړم

۱۹۸۵ / ۱ / ۲۰

٦

که ځوک هرچاته منسوب وی زه دِ تا يم
ستا په مينه کښې مې پت د ے کړ رسوا يم
دا سندرې تل په زړه او په خوله وايم
په ښه خوی له بد خواهانو بې پروا يم
په نرمۍ لکه اوبه د اور سزا يم

په خندا د خنده رويو چې خندېږم
په ژړا د ژړوليو به ژړېږم
د الفت په پلوشو کښې زه تودېږم
و هرچاته په خپل شکل ځرګندېږم
ائينې غوندې بې روېه بې ريا يم

د فطرت سره چې سم وي هغه کس دے
په خپل ځان چې مسلط وي هغه وس دے
تل د يار په درکښې ناست يم دا مې بس دے
قناعت مې ترخرقې لاندې اطلس دے
په د درست جهان بادشاه ظاهرګدا يم

زه د عشق سوے بحر کے دريانوش يم
په الفت کښې د رښتينې مينې جوش يم
راته ګوره زه د خپل زړګي سرپوش يم
د غنچې په څېر په سل ژبو خاموش يم
لکه بوی هسې په پټه خوله ګويا يم

چې مې زړه د اشنا فضل ته واصل کړ
بيا مې سوچ هم د خودۍ په خپل تحصيل کړ
زړه مې هم و دې عالم لره محصل کړ
په ژړا مې د خپل يار ديدن حاصل کړ
د شبنم په څېر له ګل سره يکتا يم

د اشنا په لوری ټک کړم نه ستړی‌ږم
زه د سین په څیر چي یمه تل بهیږم
ویرے نه شم په همدې راز به پوهیږم
په همدې سپینو جامو به معلومیږم
لکه ابر هم ګوهر یم هم دریا یم

حرکت د ژوند شعار دے نه ناستیه
د منزل ادب رفتار دے نه ملاستیه
د جهان ټوله ښکلا په اراستیه
د راز عمر مي حاصل شوله راستیه
لکه سروه مدام سبز و تازه پایم

"چشتي" څپله تله تاده سپکه کړې
د ټګ لار دې له کاروانه چپه کړې
دا خبره بابا ماته سوکه کړې
که چا لار د عاشقۍ وی ورکه کړې
زه "رحمان" د ګمرهانو رهنما یم

۲۹/۱۰/۱۹۸۶

۷

زړه او سر مې دې له تانه وي قربان
ته و ماته همېش ښکارې مهربان
زه له خدایه څنې څه غواړم ؟ جانان
فراموش مې کړ د ستا په مینه ځان
ځان لا څه دے ؟ بلکې عمر جاوېدان

زه د عشق په هسکو، ټیټو لاړو خوښ یم
په دې لارو کښې په غرونو، بارو خوښ یم
د الفت او محبت په چارو خوښ یم
لکه زه چې ستا د در په خاورو خوښ یم
هومره عیش وطرب نه لري شاهان

د جفا په لار دې نور خنډونه اخلم
د واورېينې نامېدۍ منډونه اخلم
په تهتر مې د زخموګنډونه اخلم
لګه زړه چې ستا د غم پنډونه اخلم
هومره پنډ اخېستې نه شي پهلوان

د اوږدو لارو پويان يم ستا په عشق کښې
په رفتار کښې خرامان يم ستا په عشق کښې
سربراخيرې ګرېوان يم ستا په عشق کښې
هسې بې سرو سامان يم ستا په عشق کښې
چې آګاه نه يم په سرو په سامان

دا زړه هسې يم رسوا د چا په مينه
بنه پوهېږمه رسوا د تا په مينه
تاچې ماته ويل زړه دې را په مينه
هسې بې شرابو مست يم ستا په مينه
چې خبر نه يم له زمکې له اسمان

کـه ږاځې او د نیکمرغۍ فال وعده کړې
مستقبل بنه او نیکمرغه حال وعده کړې
ماته چاوې ته د سر و مال وعده کړې
دا به څرنګ شي چې ته د کال وعده کړې
په مانه تېرېږي بې تا یو زمان

یو آواز دې ګونډې وا ورمه زه څک یم
په ږاتلو کښې دې ږښتیا هم لږ په شک یم
زړه مې وایي ستا د هیلو ځنې ډک یم
تمامي عمر د ستا په طلب ورک یم
لټوم دې په هر ښار په بیابان

که له ځای یې خوځوې که یې پرېږدې ته
که لاریې ستنوې که یې پرېږدې ته
چېرته یې لرې غورځوې که یې پرېږدې ته
که له دره یې شړې که یې پرېږدې ته
ډېر مین دے ستا په مخ "عبدالرحمان"

۱۹۸٦ ـ ۱۰ ـ ۳۱

۸

زما د مینې ستا د حسن مثال نشته
ستا په څېر ښایسته بدرو هلال نشته
بې له وصفه ستا مې هیڅ قیل وقال نشته
ستا په مخ کښې چې حساب د جمال نشته
ځکه ما ته د صبر مجال نشته

خدایه! ما له دغه دره خطا مه کړه
دیار زړه هم ناراضا ته له ما مه کړه
په نصیب مې په ژوندون کښې جفا مه کړه
ته د سر او د مال وېره په ما مه کړه
وېره ما ته د سر او د مال نشته

ستا د بنه خبر له زیری سره ریږد م
جفا هیره کړم له هیرې سره ریږد م
سختی تیره شوه له تیرې سره ریږد م
زړه په د اسبب له ویرې سره ریږد م
چې ستا ویره کښې ثواب دے وبال نشته

که مې غم غوارې بدل ته په راحت کړې
زړه مې تم په دوه خبرې ملاحت کړې
ما سرلوړے په یو کار د شجاعت کړې
که وعده دیوې چارې یو ساعت کړې
د هغې چارې امید مې په کال نشته

خوش خوانی د بلبلانو ستا دیدن دے
هوسایی د پتنګانو ستا دیدن دے
کنجکاوے د هوښیارانو ستا دیدن دے
روشنایی مې د چشمانو ستا دیدن دے
په دا کور کښې بل څراغ اومشال نشته

بې بنا يسته که قميص د ځان او ريب کا
ګومان کاندي چې به زړونه هم فريب کا
نه بنائېږي چې د عشق لاره کښې ريب کا
مخ دې بې خطه بې خاله هسې زيب کا
چې بې هيڅ حاجت په خط و په خال نشته

ته رمايې ره د تا يم د زړه سره
په جهان کښې تر همه وُ يې بهتره
دا مې سوال دے تا ته اى د زړه افسره!
مخامخ که راته وګورې دلبره
په کاته کښې دې ثواب دے وبال نشته

ستا بنايست رښتيا "چشتي" وته مقبول دے
هر عاشق د تا د سترګو نه مقتول دے
که تا نه غواړي ژوند کړي هغه مسئول دے
ستا په ياد و کښې "رحمان" هسې مشغول دے
چې په زړه کښې يې هيڅ غم د وصال نشته




دا خودی ده له ضمیره دے خبر
د قلم په څوکه یې لیکم مختصر
وایم وایم که هر څوشی مکرّر
چې په زور ورسره نه یې برابر
د هغو تر څنګه مه کښېنه زړور

که ځان زور بولی وېده دی فهم وکړه
دې له هسکه په لوېده دی فهم وکړه
له برېښنا سره ګېنده دی فهم وکړه
زورور اور او اوبه دی فهم وکړه
چې ډوب نه شې یا ونه سېځې بشر

د ټولـنې هڅول بې شوره نه شي
ژوند کول ، مینه پالل بې کوره نه شي
پیمانه دې د همت نسکوره نه شي
زندګی که بې اوبو بې اوره نه شي
تل هم نه دی هیچا ایښی په ټټر

زړه مې ډک دے څه به وباسم آهونه
د افغان له کوره پورته شول ګردونه
پښتو نخوا کښې د پردو ویـنم فوځونه
خدایه ورمه وله سیلاب دچا په خونه
که پرې قطع هم اوبه وی د کوثر

روس کافر که رسوی وچاته فیض
لاس د شر که رسوی وچاته فیض
هر غاور که رسوی وچاته فیض
زوروور که رسوی وچاته فیض
له دې فیضه سره وکښه ضرر

په خود سازو ملغلرو غلط مه شه
کوتې پکښې د ے په دې زرو غلط مه شه
په خپلوی د سرو کافرو غلط مه شه
په یاری د زورورو غلط مه شه
مګر دا چې تر ده نه یې زورور

خلقیان خوار کړې په افسون د شوخبرو
ټول وطن یې ولاړه په سرو لښکرو
د غه پوهه وه «چشتی» د بې هنرو
چې هنر کړی یاری د زورورو
زه «رحمان» کومه بول په دا هنر

۱۵/۱۰/۱۹۸۶

۱۰

له شهرت ځني ځان زغورمه شهیر یم
خیرخواهي ته په ټولنه کښې وزیر یم
تل نیکانو ته د ښې لارې د بیر یم
که مې څوک په فقیرۍ شمېرې فقیر یم
که مې څوک په امیرۍ شمېرې امیر یم

د عشاقو وحلقې لره یې غواړم
دجانان د مخې ښې لره یې غواړم
د یوې خاصې بخښې لره یې غواړم
د دلبرو صدقې لره یې غواړم
هسې نه چې په دنیا پسې زهیر یم

د غه رسم د سبيل دے اوکه نه وی
ګام په ګام جوړ روڼ دليل دے اوکه نه وی
د عشاقو ښه محفل دے اوکه نه وی
د خرقې خدمت مشکل دے اوکه نه وی
زه هر دم و د غه چارې وته حير يم

ما د هيلو سترګې تل نيولی تا ته
که ښه نه کومه وواياست و ما ته
انسانی حق د انسان دے ماته را ته
هم پند اخلمه هم پند وايم هرچا ته
زه د ځېنو يم مريد، د ځېنو پير يم

د نجات زېرمه مې ستا د زلفو ول دے
تله او تګ مې د دلبرو پل په پل دے
ببلتون هم نه کړم زهير په ماخه چل دے
په هجران کښې خيال د يار راسره مل دے
په زندان کښې د يوسف سره اسير يم

د نجات هیله هیڅ لورته بله نشته
بې جانان لاره و کورته بله نشته
عقیده له دې نه پورته بله نشته
ازادی تر دا په هورته بله نشته
چې بندی د یار د زلفو په زنځیر یم

له «چشتي» ترمغه کوم چې غزلخوان دی
څه لیکونکی د مضمون او د بیان دی
د پښتو د ژبې څه چې شاعران دی
خوشحال او دولتان مې غلامان دی
زه «رحمان» په پښتو ژبه عالمګیر یم

۱۰/ ۸ / ۱۹۸۶




وایي اغیار چې د دوزخ ژبه ده
زهٔ به جنت ته له پښتو سره ځم

"حمزه شنواری"

# حمد

۱

ستا ثنا ته لویه خدایه ! ښه زبان را
ژړه او ذهن په دې لاره کښې روښان را
نعمتونو کښې دې شکر ته بیان را
خدایه ! موږ ته پاکه برخه د ایمان را
موږ ته علم، غوره پوهه د قرآن را

له فکری تیاره و ښکاره دلیل ته ورشو
لوړو ټیټو نه هوار سبیل ته ورشو
باغ د هیلو وی تازه جمیل ته ورشو
پل په پل چې د مقصد منزل ته ورشو
محبت د محمدؐ آخرزمان را

راپه برخه هدایت ته یېزدانی کړه
هوش وګوش مې تل سپېڅلی سبحانی کړه
سمه سیخه لاره مونږ ته ارزانی کړه
په تعلیم نه مونږه زړونه نورانی کړه
په رنځود امتیاز موتورچشمان را

قربانی کښې مو قبول کړه دا سرونه
د دښمن راباندې وځبه فوځونه
په مونږ غوځ کړه طاغوتی د فرېب ولونه
د دنیا په باغ موکړه خندان ګلونه
خیال په بوی پسې نسیم غوندې پرېشان را

هوش وګوش مود دښمن فرېب ته ځک کړه
هر یو فرد مود دښمن ستر ګوکښې لک کړه
لاس وپښې، خوله مې جهاد لره توپک کړه
د پرو، جنبو لعنت زمونږ نه ورک کړه
ښه جذبه د ورورولی د مسلمان را

له نېکۍ له نېکخوئي مې برخه حځ کړه
د انسان د خیر تو دوخې ته مې غوږ کړه
ټول جهان راباندې وکړه ماګځ کړه
اسلامي جهان راغونډ په یو مرکز کړه
نور جهان چې کړي روښن هغه جهان را

خوار «چشتي» کړه ای ښښتنه ارجمنده
چې د قام په قافلوکښې وي ځرګنده
مستحکم کړه زما له یار سره پیونده
ما «حمزه» ته یثربی باده خاونده!
په ښاغلې پیمانه کښې د افغان را

۱۳۶۶/۲/۲۶

## مناجات

۲

څه تیاره ده لویه خدایه! ځلاند لمر په راختون کړه
تار په تار په کړو سریو، رڼا په برخه ته سمون کړه
په ریښتونې سمې لارې، په ریښتیا زموږ ستړون کړه
چې بې تا چاته تیټ نه شي، ښکیلې زما ژوندون کړه
زړه زما دې مسلمان وي، تفکر مې د پښتون کړه

په تاریخ کښې مو پلرونو، هره سوبه له پردو وړه
د همت شمله به جګه، په نړۍ کښې تل هغو وړه
د پښتون په پښتونواله، به هرچا کوله لوړه
زړه له وخته کیله نه کړم، چې بنادي یې له ما یوړه
خو کاروان مې د همت او استقلال بېرته راستون کړه

دښمن اور راباندې بل دے، خواخو به په ویو نه شی
نوح او زړه مې پیکار کاندی، په سر نه شی په هډ نه شی
ما ته داسې غرېو راغلے، څنګه ږغ به مې پرې نه شی؟
کوم سباچې راروان دے، چې د نن سره ګډ نه شی
زمانن واخله پرون کړه، او د نن په ځای پرون کړه

ژوند مېله ده، عشق او مینه، زیاتوی د مېلې حسن
په ټولنه کښې چې عشق وی، زیاتوی د کتلې حسن
هغه سر چې قربانیږی، زیات یې وی د شملې حسن
خدایه! زیات کړې یو په لسه، د پښتو د لیلې حسن
بیا زما مینه هم زیاته یو په لسه تر مجنون کړه

زه د عصر فرعونانو، ساحرانو شپېلکی اورم
شیطانی دیوان یې کړځی، په هوا کښې غږکی اورم
ټینګ یې مار غوندې بښویږی، سم او غره کښې پوښکی اورم
په تېجنه زمانه کښې د حالاتو زبېرکی اورم
ته حکمت زما د خضر، اندېښه د افلاطون کړه

سره تیت شو- سره وریت شو، څه مو نشته ابادي کښې
د ټولنې اعمار راکړه، لویه خدایه! په ورانۍ کښې
بیا د عشق جذ به ژوندی کړه، د افغان په لوګړي کښې
را عطا لکه دګل کړې، جمعیت په پریشانۍ کښې
چې حاصله ترې خندا وي، خوښ مې هغه زړه چاودون کړه

د ملحد روس له تاړاکه، په افغان دی لمبې بلې
ای د لوی جهان واکداره! زماخوارۍ دې ولیدلې
ته سمون کړه راپه برخه، او طالع مې کړه بدلې
په ګلشن یې کړې بدلې، دا زما واره شـــلې
هر یو زړه د ملت مې، تیغ په لاس کښې راندغون کړه

خیر که موږ شو مهاجر اوس، خو قوي مو دې ایمان وي
خدایه! ته خوبې پوره کړې، د افغان چې څه ارمان وي
په ښښکڼه او همت مو، درست جهان بیا چراغان وي
زه دې وچ هډوکی شپېلم، خو ملت مې دې سلطان وي
دا زما د سخن سیوری، په معنی کښې همایون کړه

د پـردو په تال زنګاوه، ځکه يو وړلو خوبونو
که خپل ځان ته مو کاته هم، د پردو له دوربينو
هک حيران يو پاتې شوي، د اغيار په افسونونو
چې احساس د کمترۍ مې شو، د غير له تهذيبونو
د اچمچې د دق او سېل مې، د کالبوت ځنې بېرون کړه

۲۵/۱۱/۱۹۸۴

۳

په عاشقۍ مې خوشحالېږې ولې ؟
زما په مینه خفه کېږې ولې ؟
له اسوېلو نه مې څورېږې ولې ؟
چې رابښکاره شې نو پټېږې ولې ؟
بیا چې پټېږې نو مسېږې ولې ؟

د یار لیدو ته تېښ او پاس راغلې
د عشق دګر ته بې وسواس راغلې
د غم څپو ته بې هراس راغلې
اوبښکې چې یار ته زړه په لاس راغلې
بیا د بڼو له څوکو لوېږې ولې ؟

ژړه مې له مينې مالامال له منم
ژړه چې دې وويستم له حاله منم
په محبت شوم سربداله منم
وکړو انکار دې له وصاله منم
دا راته وايه چې شرمېږې ولې ؟

د يار په مينه کښې حضور شو زما
له خوشحالۍ نه خو مخ سور شو زما
د ادب زده کړې ته ضرور شو زما
يواځې ته راغلې قصور شو زما
چې راغلې راغلې نو بوږنېږې ولې ؟

زړه خو مې بل چا ته ورکړے نه دے
هم په چل ول چا رانه وړے ژړه دے
زړه مې د بل چا پورورړے نه دے
ما دې بدل خو پيدا کړے نه دے
دا سې په هر ساعت بدلېږې ولې ؟

نظر ته وایم څیرېږه چې نه شي
اوښکې ته وایم څڅېږه چې نه شي
زړګي ته وایم صبرېږه چې نه شي
د زړه پتنګه ! سوځېږه چې نه شي
د هغې شمعې نه څرخېږې ولې ؟

کړه مې له ځانه سره دا قیل وقال
چې به راوړمه خپل اشنا ته مثال
که زړه ځورېږي دا به نه وي وبال
زړه دې شي سخت لکه د کاڼي په سوال
چې دې تعریف وشي پستېږي ولې ؟

کله په یو کاته یو دهر وکړي
کله په یوه مسکا یو ښهر وکړي
په شوخو سترګو دې لوی جهر وکړي
کله ناجانه، کله قهر وکړي
چې پوهېږه نه شي، پوهېږي ولې ؟

څوک سپېلني شول او چا وکړې کمتې

شوې رابشکاره د „چشتي“ زېرمې پټې

ژوند دغه يون دے حرکت او لمتې

د „حمزه“ خوارې لوغړنې سمتې!

چې بلبېدے نه شي دود بېړې ولې؟

۲۵/۱۰/۱۹۸۴

۵/۱۱/۱۹۸۴

۴

که راته وګورې زما دی در پسې سترګې
ګوندې په خپل ویښتلی ښکار دې شی خوږې سترګې
څومره به د روند شم که راواړوې د ربې سترګې.
که جوړوې نوجوړوه راته زړې سترګې
اوس هغه نه دی چې له واکه مې وتې سترګې

زما د زړه زما د سترګو ستا په لوړی هوا
ته مې هغه د زړه ټکورېې له تا غواړم دوا
که مې سوړے زړه په بڼو کړې دا عمل دے روا
څوکه ګستاخ زما نظر وو د مغل نه سوا
خدایږو چې ستا یې کچه نه کړې دا پڅې سترګې

د ستا دیدن ته زړه د هیلو ځوانۍ حسن ګڼم
لکه ګلاب په غوړېدو پرېشانۍ حسن ګڼم
تل ستا په غم کښې مې رنګ ژېړ زعفرانۍ حسن ګڼم
زړه برندې سترګې او شنډله ځوانۍ حسن ګڼم
نه نزې ملا لکه وېښته، نه تیتې مړې سترګې

چې رقیب وینم غمونه دې پردرانه شی زما
سېلاب د اوښکو راولاړ له بېلتانه شی زما
چې تا رایاد کړم امېد ونه مېلمانه شی زما
په یو مرکز به ارمانونه یښتانه شی زما
که التفات یې د ککوکړلې دیوې سترګې

اشنایه! عذر ته به زړه په سر سر تور درشم
د عشق په تاو به لکه سور بل شوے اور درشم
سل واړې زه یم د رغلے بیا به نور درشم
ستا د ترخو به دا علاج وی چې په کور درشم
ننګ د پښتو به دې مېلمه ته کړی خوږې سترګې

ښکلي جا مې دي چې يې واغوندې زرې غوندې ته
رښتيا چې څومره ښايسته شوې د پرې غوندې ته
ويشتل په ځای کړې راته ښکارې باورې غوندې ته
پورته کوه د رڼې درڼې يې د زمرې غوندې ته
لګه هوسې په تړهه ولې ګرځوې سترګې؟

زخم د زړه خو را بخښلے دے حبيب ما ته
بې له جانانه هيڅوک نشته دے قريب ما ته
يار مې پوهيږی چې رانه ولې طبيب ما ته
اخر به تيږه کړې زړه ماو د رقيب ما ته
ته ورسره چې کله جنګوې سترګې

جميل د حسن لوې پانګې په هرچا ښندلې
په څه انداز يې د هستۍ په تماشا خندلې
اوس يې لبدو ته کړې "چشتی" سترګې له چابدلې
دريغه چې د ومره يو نظر خو وے "حمزه" ليدلې
چې په پلو کښې قهريدې که موسيدې سترګې

د مرحوم محمد اکبرخان خادم په یاد :

۲، ۱۱، ۱۹۸۴

۵

ای خادمه ! روح دې ښاد اوسه اوچت
چې قومي سمون دې غوښت په خپل همت
ستا په دغه فلسفه و نصیحت
سبق زده کړه د استاذ نه د فطرت
د عالم د نظام ژوند د ے کفایت

خاصیت یې مغز او سر کښې څومره ایښے
لوړ صفت یې په جوهر کښې څومره ایښے
کوښې راز یې په شجر کښې هومره ایښے
حرارت یې دے په نمر کښې دومره ایښے
معتدل چې د یخنۍ کاندی شدت

چې ځانې ښښکې غواړي وحدت نه دے
ته د ځان ګټو ته ګوري الفت نه دے
که د نورو په سر سپوريې رفعت نه دے
چې باران د حد نه زيات شي رحمت نه دے
په يوه ټکي رحمت وي شي زحمت

خطا ځه قام په پردو لاړو ببول دی
حبطه شاني رابنکاري غولول دی
داخو نه شي ځان تاريخ ته شمول دی
لاحاصله دولت سيند ته غورځول دی
دے اسراف د حد په هور ته سخاوت

ځان سنبال ته د خودی په ښه هنر کړه
د سمون دپاره ځان وته نظر کړه
که د قام د ونې څانګه بې ثمر کړه
په خپل ځان کښې فکر وکړه ځان خبر کړه
چې بهر له حده نه ځي طبيعت

چا ده چېرته کښته کړې په تور تم کښې؟؟
د پرد ولاړو دود نه دی په غم کښې
چې دوستي او محبت اوري په بم کښې
کوم یو دین دے قبول شوے په عالم کښې
چې د حد نه یې سوا وی ریاضت

د خودۍ او هوښیارۍ په لوی جهان کښې
دے غرض انسانیت په هر انسان کښې
نه ځایږی دا لوېښت مې په بیان کښې
یوه شمعه ده د ژوند په شبستان کښې
تړې نه نورې تیرې تبنتي د غربت

ړندول به دلداری د تمدن وی
بل وژل به همیاری د تمدن وی
بدکاری به هوښیاری د تمدن وی
هغه ګل به کاغذی د تمدن وی
چې پکښې د کفایت نه وی نکهت

په عمرونوکښې یو وړیت په زړه افګاره
سمه لاړه نه رابښیه کردګاره !
د پربښایست لرې ړما پروردګاره !
یو ښایست دے دخوبرویو بې سېنګاره
اسوېلی د عاشقانو د حسرت

ړما خو هسې ښکلی ژوند ته رضا کېږی
ګرم ناګرم په پښتونواله جلا کېږی
بڼ سمسور وی او وګړی پخلا کېږی
د حسد چینې پکښې نه پیدا کېږی
د زړه ونه راوړی بار د قناعت

ښه عمل ته توفیق غواړو په خوله نه شی
بدی ورکه کړی چې ببرته یې راتله نه شی
ته مو داسې بختور کړې نورخه نه شی
چې د غم قلم پرې چوی راکښه نه شی
وی همه دخوشحالی نه عبارت

شاعران د قدر ورځې غزلخوان شي
د قام بنې، بدې همدوی وته عیان شي
د ټولنې سترګور دی که ګویان شي
سندریز د هر یو قام پرې ګلستان شي
چې نغمې کړي دا بلبل د تهنیت

بنه د ځان دی نه د پلار او د نیکونو
څوک د ځان باتې وهي څوک د پلرونو
څوک عمل کا څوک نازېږي په ترېرونو
د ے عرض له یوې ژبې د وو غوږونو
وینا کمه ډېر پکار د ے سماعت

د حمزه په نظم لږ شوه سره لعلونه
ما چشتی د زړه ښکاره کړه څه زخمونه
اوس خادم لره د الی بړدمه شعرونه
کم خوراک، کمه وینا او کم خوبونه
پکښې شته صحت، عزت او شرافت

٦

دا څنګه عجیبه ده، په راتلو کښې د کتو ده
په ټګ او په انداز د قدمو کښې د کتو ده
همدا وه چې یې ټوپ کړو، په ټوپو کښې د کتو ده
پسرلی کښې شوه خفه خو په تلو تلو کښې د کتو ده
بې واکه په شابېرته راکتو کښې د کتو ده

دا څومره ښایسته وه چې ما ولېده په تله کښې
ټکرے یې نیو په لاس کښې، مشغولا یې وه په وله کښې
زه یې ولېدمه ودرېده نژدې په یوه پـله کښې
مسکی، او سترګې کښېنته د سالو پېڅکه په خوله کښې
بیا څوړند سر په زمکه ګرېدو کښې د کتو ده

منګې واخلي د زړګي په شان ځي او نېړته راشي
همزولې ورته ګورې په ټوپونو ویړته راشي
او به واخلي له نېره او خپل کورته بېړته راشي
څه ښکلې يې غيرت دے چې په مخه چېړته راشي
د لارې نه په ډډه تېرېدو کښې د کتو ده

نغمه د هغې ښکلې کاشکې ما وکړلے سمعه
که چېرته مخ ښکاره کړي عاشقان يې وي په طمعه
د حسن په انداز کله ډېوه وي، کله شمعه
ګستاخ نظر زما چې يو مرکز ته کړه راجمعه
ښېښنايي د ښايست په اننګو کښې د کتو ده

د سوېو زړو دريا ده، غوږ او سترګې په نڅا دي
طاعت دے، عبادت دے، ملايکې په خندا دي
ښايست او تماشاچې غېږ په غېږه، خوا په خوا دي
پرېشانه ده چې تږې نظرونه له هر خوا دي
دا ښکلې مېلمنه په کوربنو کښې د کتو ده

ما دا خبر له لویو پخوانو دے اور پدلے
هرچا چې سعیه وکړه د ے مطلب ته رسېدلے
یاران د کامیابۍ هم په هغو دے ورپېدلے
چا وې چې ګل په بېړته غوټۍ نه شي غوړېدلے
له شرم او له حیا په غونځېدو کېنې دکتو ده

سکون د زړه او روح چې په یلړب کېنې درسره وی
دا څه بنګلے جانان دې په مطلب کېنې درسره وی
خوښۍ او خوشحالۍ ستا په طلب کېنې درسره وی
پسرلے د امېد ونو په جلب کېنې درسره وی
دا تللې تمنا مې په راتلو کېنې دکتو ده

لوګے شمه، ترې خُار شم، محبت خوبي رفعت دے
ترسرې سپېلنے شمه، الفت بي لوی عزت دے
چې ویاړی مې، سبځُ مې دا په عشق کېنې عظمت دے
ملګرېه! صباحت او ملاحت خوبي قیامت دے
منمه، خو په پت او په پښتو کېنې دکتو ده

ژوندون په دغه عصراوصدی کښې دکتو دے
بهیر مودے روان، په روانئ کښې دکتو دے
"چشتی" وایی په سخت اواسانئ کښې دکتو دے
«حمزه» منم چې حسن یې ځوانئ کښې دکتو دے
ځوانئ مې پسې هـم په څښدو کښې دکتو ده

۱۴ / ۱۱ / ۱۹۸۴

٧

زه د آغاز او د انجام نه حکایت نه یمه
د دې هستۍ له لوی جهانه شکایت نه یمه
یمه یو جز د دې جهان خو وضاحت نه یمه
چې د حوّانو او زړبودې نه عبارت نه یمه
ځکه دا ده د ژوندانه په نهایت نه یمه

زما د ژوند هدف ته څرک او غوغا مه کړه
د ژوند په دې سړو تودو مې ته پخلا مه کړه
دغه ژوندون او مرګ مې ته بې ابتلا مه کړه
ګله ژوندون مې ستا په څېر یوه خندا مه کړه
چې بې مقصده پریشانه وی نکهت نه یمه

ای زمار به ! نه زما د زړه وسعت وګوره
بیا مې له ستوڼو د ژوندون سره شدت وګوره
په سمه لاره مې ربښتونې حرکت وګوره
وینه مې ختمه ده زما د زړه همت وګوره
نور دې ازمانه د پرېشانه زړه همت نه یمه

داخوږمن زړه مې خوږېدلې اشنا ستا په جفا
ورکوټې زوی مې کړېدلې اشنا ستا په جفا
د پلرو کور مې نړېدلې اشنا ستا په جفا
پښتني هوډ مې پارېدلې اشنا ستا په جفا
اوس مې د زړه نه شه بهر پښتني پت نه یمه

چې مې مرستیال د ژبې، روح او د خِرد نه شوې
په ژوبله ، درد او په مرض کښې مې مدد نه شوې
هېڅ وسیله مې د غاصب د پرې او رد نه شوې
عشقه ! چې ته زما د هوډ سره بلد نه شوې
لاړشه زمانه چې قابل دې د عظمت نه یمه

ته مې د هڅو، غورځنګونو کلک جلو ونیسي
بیا مې د هیلو بوټي د لوڅانګو لوڅ ونیسي
لکه اوبه تیتې، ژورې خواته ړو ونیسي
اوس چې ما ویني په ورو مخ ته پلو ونیسي
دا څه سبب دے چې په زړه کښې دې هیبت نه یمه

ګومان دې کړے په ما تشه څه غوغا ولوله
ته مې له واړه پېژندے که نه شې مه کړه ګیله
پېژند ګلوۍ ته مې شه څیر په مرحله مرحله
لا پوهه نه یې پرې یو څو ځله یې بیا ولوله
زړه هغه لفظ یمه اشنا چې لا جوت نه یمه

د بې وسۍ تودې به خورمه چې څوراشي وشاق
ستونځې د لارې راپه برخه دی نفاق او شقاق
ګوندې بلد یې دلبرجانه! ته زما په مزاق
پلو په ورو اوچتوه یمه لیچن د فراق
چې دې د مخ له پلوشو سره عادت نه یمه

مه راته وایاست له زخمونو نه لا جوړ نه یې ته

د قام په غم کښې ای "چشتی"! څنګه لا زوړ نه یې ته؟

د ویر په ګرمو حوادثو کښې لا سوړ نه یې ته

"حمزه" په کُنج د ګمنامۍ ولې لا موړ نه یې ته؟

تل به دې دا وي چې زه وړ د شهرت نه یمه

۱/۱۲/۱۹۸۴

٨

د وصال اوبه يې ماته تل سراب شي
هيله من خوبې لاهو په مئ وناب شي
د ضمير ژبه مې ځړيکه د رباب شي
د رڼه ګورم ستا په مخ خوبه نقاب شي
که هرڅو رالره خپل نظر حجاب شي

د حسرت اوښکې يې تل له سترګو اوري
چې څوک غواړي .بې دِتا له سترګو نوري
لا به نه خوري ها د غبرګو سترګو توري
چې ستا مخ نه څوک په وربيو سترګو ګوري
خود هغه به لکه زلفې پېچ وتاب شي

غم د یار او زما زړه دې خواږه خواوې
بر خه غواړم که وفا وې که جفا وې
ترهغو هیلو ځاریږم چې له تا وې
په توبو توبو یې لا خمار سوا وې
هغه شونډې چې کباب او هم شراب شي

زړه هغو ته ورکوه چې دلبرې کړي
زړه هغه بښه پېژنې چې زرګرې کړي
د جانان طلب به هر څه راڅرګندې کړي
زه پوهېږم چې زاړه به ډېر زلمې کړي
د طفلۍ بې قرارې بشکلې شباب شي

چې شلید لې قبا نه لرې عشق نه دے
بیا غوښتنه رسوا نه لرې عشق نه دے
په مطلب کښې غوغا نه لرې عشق نه دے
چې څه رنګ د افشا نه لرې عشق نه دے
دا اخفا ده چې پیدا ترې اضطراب شي

د الفت او مينې زما خوخريدار يې
زړه د رخارشمه زما چې ته دلدار يې
ما وې ما ته به دې پام وي چې بيدار يې
په د اخيال ومه غافل چې وفادار يې
چې کوم خيال په زړه کښې ځای ونيسي خواب شي

د ديدن وعده چې غوارم نن، پرون کړې
هرطلب مې نيمه خوا په چند وچون کړې
خوار «چشتي» خو په همدې کار جګرخون کړې
چې مې پس له وعدې وويښې مخ ستون کړې
ما «حمزه» ته دې همدا ادا جواب شي

٦، ١٢، ١٩٨٤

٩

د هوا باز په لومه وله راولم
په دغه لار یې پله په پله راولم
را ځونه ستر ګو، زړه ته مله راولم
څښتني خبرې چې په زړه راولم
بیا یې نو ولې په خوله نه راولم

څومره توده ده دا د عشق ولوله
په عقل کله شي د عشق فیصله
برق او رڼا سپړي د عشق فاصله
له زړه نه ستا د تصوّر قافله
ولې بیا زړه ته په لېمه راولم

دوه سترګې ترې داسې هم لرمه
ترې ملغلرې داسې هم لرمه
تر لفظ بهترې داسې هم لرمه
يو ښو خبرې داسې هم لرمه
چې يې په خوله نه يې په زړه راولم

اشنا مې مل دے زه د مله د پاره
پل يې په پله ږدمه د تله د پاره
د هغې لارې هغه پله د پاوه
زړه خو مې ستا دے خو د زړه د پاره
د زړه خبرې ستا په خوله راولم

زړه مې دِ تا له کوڅې هيڅ نه راځي
يې له جانانه په خولې هيڅ نه راځي
نور د نظر په ځپې هيڅ نه راځي
چې يې له تا نه پکښې هيڅ نه راځي
وايه چې نور به په زړه څه راولم

د پسرلی ناري وهي بلبلان
بڼ ښایسته شو بوټید لی ګلان
د زړه حرم مې ګله اوس شو ودان
ښه به وی دا چې مېلمانه د ارمان
څه اشنا ته اوڅه به زه راولم

پیاله د زهرو مې نسکوره شوله
سیمه د بڼ رانه سمسوره شوله
فضا د مینې دلته نوره شوله
نوې حجره د مینې جوړه شوله
اوس د دردونو مېلمانه راولم

شولو رایاد د پښتونخوا ډولونه
په اتڼ مستو د زلمو څپونه
مینه خوږه او پښتانه دودونه
جمعه کوم به پخوانی یادونه
ورله جرګه زلړه زاړه راولم

چوی سپیدې دلته دچا دپاره
دغه تمهید دے د رنها دپاره
"چشتي" هرڅه د ابتلا دپاره
"حمزه" رقیب ته د اشنا دپاره
په زړه به بد او نه به ښه راولم

۷/۱۲/۱۹۸۴

٧/١٢/١٩٨٤

١٠

عقل ته مې مینې د بېدیا خبره وکړه
داسې د ځوانۍ په هکله چا خبره وکړه
ما هم خپل جانان ته د رښتیا خبره وکړه
زه پرې قصوروار شوم چې ما خبره وکړه
تا خبره کړې وه ما ستا خبره وکړه

بیا یې شرنګهار شو د پایزېب او د پایېلو
سر و مال مې دواړه په یارۍ کښې وبایللو
طنز نن د رقیب نه د ځواب نه دے ګاللو
څنګه دې زما د اشنا حسن وستایلو
نن خو دې رېباره! نااشنا خبره وکړه

شومه پریشان چې شوې زه ماانديشې تـتې
غم دې لولپه کړم تولې هيلې مې شوې وريتې
دا د هجر زور به کړې زړه اوې ملاوې چتې
ښ يې ايله ستړګې کړې زه ما په کتو ټيـتې
دا يې په ټول عمرکښې ښنتيا خبره وکړه

مينه کښې يې ګير زه د يوه نازک بـدن کړم
خوب وينم که ويښ يم نظاره دګلبدن کړم
پټ شوله نظره اسويلي د ځنکدن کـړم
نه يې وصل وانې زه ارمان يې د ديدن کړم
تا په ځای د زانې د عنقا خـبره وکـړه

پيغلو ته پېکې کښې بيا رواج ښکلې سورکې شوې
پوزې ته ښايست لره رواج ښکلې نتکې شوې
د غه لوازم چې شول رواج مينې تنکې شوې
ما وې چې اوس ستړګې پښتنې ولې هندکې شوې
نيغ يې شو بانه وې تا د چا خـبره وکـړه

څه چې د ساقي وو له زاهد سره به يې نه وې
دود د قلندرو له عابد سره به يې نه وې
ور چې د رقيب وو له شاهد سره به يې نه وې
ما وې چې ساقي بهر زاهد سره دې څه وې
سترګې يې کړې سرې وې چې تا بيا خبره وکړه

مينه سوزېدل په منځ د شمعې اوپتنګ وی
چېرته د پېروتې په شان مينه څنګ په څنګ وی
چيغه د فراق په ژبه دلته د سارنګ وی
طرز د فرياد په محبت کښې رنګ په رنګ وی
ښکليو ته ژړا چا په خندا خبره وکړه

ها په خپل پندار له يار ه ځان شمېری په لېرې
ځېنې په وصال شی پتنګان د اور بخښېرې
څوک لکه „چشتی،، د زړه کوټې کړې پرې منبرې
پوهه شو پرې هله چې سبا کړو ګرېوان څيرې
کومه چې „حمزه،، ته دې بېګا خبره وکړه

۱۱

ستومانه شوم په ژوند کښې واقعې دې چې راځي
له طبعې مخالفې حادثې دې چې راځي
انصاف پکښې بندې دے فيصلې دې چې راځي
حيران يم د اشنا راته جرګې دې چې راځي
او ماته بوږنوونکې وسوسې دې چې راځي

دا ټولې حادثې د خپل پردو کړې ازمېښت
د لارې د وهلو او مزلو کړې ازمېښت
په لر او بر، په ټيټ او پاس ختو کړې ازمېښت
راځي په خپله هم خو د مينو کړې ازمېښت
محفل ته په کاسو پسې کاسې دې چې راځي

اول یې وم ګرم کړې څکه یې راته کړه توبه
توبه مې وه تنګې لېبنه مې تاته کړه توبه
تر مخ که مې توبه وه هم مې شاته کړه توبه
سپرلي کښې مې په وېره وېره ماته کړه توبه
اوس خولې ته مې هر ګوټ سره توبې دي چې راځي

چې بنې ورځې سمون ته مې خیالونه نخښېدل
او بیا مې په زړګي کښې هوسونه پیارېدل
تر بنکلي مستقبل به مې خوبونه تاوېدل
خوبونه د کاکل نه وو اسان چې مالبدل
اوس پرېږده په ماګرانې شوګیرې دي چې راځي

ماښوم د غوښت په لومه د هستۍ کړه مشغولا
په ټیټ او پاس کتنه یې کړه تیته مشغولا
بیا مرګ، ژوند راجوت شولو اولویه ابتلا
مسکې په ابتدا وې څه فریب وو د بنکلا
اوس ګوره بوږنوونکي مرحلې دي چې راځي

غایه مې تکامل دے بیا کوړ کے غوارم نه کور
ځنې ته هوسېږم هم طلب کوم د اور
چې څه زاته حاصل شی هغه پرېږدم غوارم نور
تش تور مې ارمانونه په ستنه د زړه په لور
دې سرای وته لوټ شوې قافلې دی چې راځي

دا خوځنده هستی ده، هر څه مرورې چورلوی
زمان نرې پیدا کېږی چې دا ککې خوځوی
بې سوچه، بې دریزه ټول روان دی تلولی
روغ نه وو چې یې کړله بدرنګه د لېونی
یو څو لېونی وروسته راپسې دی چې راځي

مرهون د امیدونه زما عمر بې کړو ړ بر
شم ځار دې له خیالونه زما عمر بې کړو ړ بر
لوګے دې له فکرونه زما عمر بې کړو ړ بر
قربان دې له وعدو نه زما عمر بې کړو ړ بر
همداسې په ښېتو پسې نېتې دی چې راځي

اوس زه یې خنګه وښیمه هرڅه دی زما
دے دے زما په زړه کښې هم څراغ او هم رڼا
"چشتی" وایی جانانه ! کوم ځای وستایم دِ تا
"حمره" په هر دیدن مې د یار تنده شی سِوا
الفت کښې په پردو پسې پردې دی چې راځی

۱۰/۱۲/۱۹۸۴

۱۴

د رقيبانو د شپړلو وخت وو
خاص د دوستانو د لېدلو وخت وو
جانانه ! ماته د کتلو وخت وو
زما د سوال د اورېدلو وخت وو
وو په سرو اوښکو د منلو وخت وو

ساقي له ما نن پتاسه واخيسته
هم يې له باغه د نداسه واخيسته
د جام له سره يې خاصه واخيسته
ساقي له لاسه مې کاسه واخيسته
ګله ! چې ستا د يادولو وخت وو

ته چې راتللې تلولی ښکلې ښکنکه یې ؟
بیا په ټوپو لکه هوسۍ ښکنکه یې ؟
خوره وره او غرشخنې ښکنکه یې ؟
یوا ځې راغلې نومسکۍ ښکنکه یې ؟
دا خو اشنا د بوږ نېدلو وخت وو

لویه ویاړنه وه زما بلنه
دا چې تا وکړه د لقا بلنه
بې له تا څه کوم د چا بلنه
ګله ! سپرلی کړه د عطا بلنه
دا د لمن د ښند وهلو وخت وو

دا رنګه روغ لیونی چا کړمه زه
ستا محبت خو په ژړا کړمه زه
جذبې د حسن دې رسوا کړمه زه
ستا رنګینیو په خندا کړمه زه
که د ګرېوان د څېرولو وخت وو

تا وې تا مېن کړم ما به تېښت وکتل
همزولوګين کړم ما به تېښت وکتل
ژغ دې زهير کړم ما به تېښت وکتل
تا به چې ځير کړم ما به تېښت وکتل
ښکليه همدا د پوهېدلو وخت وو

«چشتي» رقيب سره سيالي وينوم
غم څپه راکړه خوځواني وينوم
د اشنا مخ ته خوشحالي وينوم
«حمزه» خو سترګو د ساقي وينوم
کېنې زما د غورځېدلو وخت وو

۳۰/۱۲/۱۹۸۴

١٣

څُمه له زړونو نه څه وام اخلم
هیلي تنکۍ دی اوس به خام اخلم
یوځه اسرې د زړه په کام اخلم
د مستو سترګو نه دې جام اخلم
زړه د فلک نه انتقام اخلم

لمر په سرو ورو کښې ستا په خوا پرېوځي
رقیب مې ځکه نیمه خوا پرېوځي
سترګې او زړه مې خوا په خوا پرېوځي
بس د ښکلا نه په ښکلا پرېوځي
چې ستا په لاره ګام په ګام اخلم

د عشق په لاره کار کولے شمه
له اغزو ډکه لار وهلے شمه
د رقیبانو ځار کولے شمه
زه د حالاتو ښکار کولے شمه
د هغو زلفو نه به دام اخلم

د رقیب تنده مې بیماره کړله
د بدبختۍ هیله مې خواره کړله
ناامیدۍ مې من ایساره کړله
سترګو مې ستا مینه هوښیاره کړله
اوس به زه جام درنه په پام اخلم

څه چې لرمه ها به ټول کړمه ځار
د غمزما ده کامیابي او وقار
ګوندې به مومم د یار درته زه لار
د ثریا فضا مې نه ده پکار
زه خو فضا د یار د بام اخلم

ستړکې دې غبرګې رانه مه ګرځوه
غبرګې ستورګې رانه مه ګرځوه
خدایږو دا زبرګې رانه مه ګرځوه
ما وې چې ستړګې رانه مه ګرځوه
وې چې په ستړګو دې سلام اخلم

غواړمه دا چې ته بې لوزه نه شې
ګرمه په ما چې ته بې لوزه نه شې
زما دُعا چې ته بې لوزه نه شې
ښکلیه په دا چې ته بې لوزه نه شې
ستا د سبا نه به ماښام اخلم

د برېښنا څړیکه ده چې زړونه چوی
ستړګې لا څه، ماغزه سرونه چوی
اور د ے، بې اوره چې اورونه چوی
د مغرب سرې، سپینې خوزړونه چوی
زه غنم رنګه د خپل قام اخلم

په عشق کښې بیعه شه عزت خونه ده
هم علامه ستا د رفعت خو نه ده
«چشتی» د لارې عظمت خو نه ده
«حمزه» بها د محبت خو نه ده
چې ملامت د خاص و عام اخلم

۵/۱/۱۹۸۵

١۴

په هنداره د زمان کښې امتحان د لوی انسان دے
څه عجیبه ابتلا ده د ژوندون کاروان روان دے
ازمېښت د خلکو کېږی که نیستمن دے که ودان دے
آئینه د تخیل خو د عکسونو یو جهان دے
چې مشغول نه وی په دې کښې هغه کوره چې حیران دے

دې جهان کښې لرو بره پراخه مخ او شاته لار ده
د عمل په دریځ وار دے جوړه د هرچا ورته لار ده
که نېکی کړې که بدی کړې خلاصه هرې خواته لار ده
د هرڅیز په تغیّر کښې له فنا بقا ته لار ده
طبیعت کښې د اشیاؤ تجرّد وته میلان دے

په عظیمه هستۍ پوه شه پام کوه په حرکاتو
انګیزې د غرایزو، تقاضې د نفسیاتو
څرخېږي د جزئیاتو، وسوسې د کلیاتو
نور څه نشته د لته کښې تکامل د خواهشاتو
په اول کښې هم ارمان وې، په اخر کښې هم ارمان دے

د خودۍ انګړ ته ګډ شه ته به ډېره وفا مومې
که له ځانه شولې لرې ته به ډېره جفا مومې
ځان په خپل همنوع کښې بویه بیا به ډېره صفا مومې
څوچې ډېره مینه وکړې، هومره ډېره بقا مومې
دې شبنم او نمر ته ګوره ! په باران پسې باران دے

دې هستۍ ته عنبرې دود وایه چا و د وګنولو
چې زمان مکان یې د واړه هم په تا و ټوکنولو
د بابا د روح حرم یې په راتلو وسوکنولو
د عدم په شبستان کښې ژوندون چا وبوګنولو
دا خنده د سحر نه وه د هستۍ څېرې ګرېوان دے

چې سمون نظر ته راغې هېڅ شے نشته د پردیو
څه چې وینم ښه ښکارېږی قافلې دی د ژوندیو
په ګلشن کښې ریاحین دی اثر نشته د بدیو
شه مسکے د ګناه برقه تسلسل شو د نېکیو
چې لېمه د ضمیر روغ دی که پیدا یکښې نقصان دے ؟

د نړۍ ګڼې څو شته دے سم خوځېږی چې یې ګورې
دا ېتم په دایره کښې هم چورلېږی چې یې ګورې
د نړۍ هستی څوپایې نه درېږی چې یې ګورې
دا سکون چې نړه یې ګورم پرې پوهېږی چې یې ګورې
دازل نه تردې دمه چې کوم څیز ګورې روان دے

ښها ګله شته د حسن نه ښها د چا د زلفو
د ښایست په نندارتون کښې ده رښا د چاد زلفو
نظرونه عیارېږی په سودا د چا د زلفو
نه قصور شته د ګلانو نه خطا د چا د زلفو
دا دے چا پرېشان کړے چې مین پرې پرېشان دے

"چشتي"خير غواړه د نورو په خندا هم په ژړا کښې
د خالق رضا هم بويه ته د خلقو په رضا کښې
سمه لاره به وهې تل چې سمون راغے په چا کښې
"حمزه" د هر مسلمانان شته هم کافر شته په دنيا کښې
زه اشنا د هغه کس يم چې روش يې د انسان دے

۱۶ / ۱ / ۱۹۸۵

۱۵

یادونه دې زما د ویښو شپولارې وهي
لوزونه دې زما د شوګیرو لارې وهي
دا برنډې سترګې ځارشم د مزلولارې وهي
ستاګوابن زما د سوال او د زارو لارې وهي
دا ښکلې غلچکی د قافلو لارې وهي

دیدن دې د عالـم تر ښایسته ګومانه خوږ
چې څومره د رتـه ګورمـه هغومره راته خوږ
دا څنګ ښایستوب د ے چې یې م اوشانه خوږ
نا جانې دې د نظر چاته دے ترېځ او چاته خوږ
شوګیار خو راکښې یود ے خوځو ځولارې وهي

بسمل دې په در پروت يم ګله ماتې مې دی وزر

ماروح تاته درکړے نه شی سوال د مال وسر

ده مينه هوله ګتهه پکښې نشته د ے ضرر

ارمان مې يو نظر وو واخله مات مې کړو نظر

دا نن زه ما ککی د سپيلنو لارې وهی

ستا حسن عجب دام وو زما زړه د ګښېوتو

په مينه کښې بندی يمه زه نه يم د وتو

پاک زړه مې د ے راوړے ورسره سينه پښتو

غلط يې شوې د سترګو په ساده ساده کتو

دا مړې غوندې چې ښکاری د ژوندو لارې وهی

په سرو مال او روح به زه دِ تا واخلمه ناز

ساتم به يې ساتمه زه د عشق د رزم راز

په اور د مينې غوارم سپيلنے شم کړم ګداز

مضراب ته د بڼو به دې ورجار کړم د زړه ساز

دا شرط به وی پکښې چې د پښتو لارې وهی

په سلګو، ژبه، خوله کړمه ستاینه زه دِ تا
درځار دې شی دا سر او مال او ژوند وار په زما
پر تو دې هومره غواړم چې هم مخ وینم هم شا
بیا داسې په تیاره شپه کښې چې رانه شې اشنا
بانه دې د سپوږمۍ د پلوشو لارې وهي

ستا دا ننګه وته ځار شم چې وازه دې نه کړې تیت
په بر کتو دې خوښ یم چې کاته دې نه کړې تیت
راغلي پښتانه دي میلمانه دې نه کړې تیت
"حمزه" چې هغو سترګو ته بانه دې نه کړې تیت
کیدے شي چې هندوان د پښتنو لارې وهي

۱۸ ، ۲ ، ۱۹۸۵

۱٦

حق غواړم غوښتنه او دليل ښکاري اسان
حقه لار وهمه سل سبيل ښکاري اسان
حقه ملکرتيا د جبرئيل ښکاري اسان
کلکې ارادې وته منزل ښکاري اسان
زړه چې مطمئن وي هر مشکل ښکاري اسان

تنده نه ماتيږي نظرګاه مې يو سراب دے
دا زما قيام چې ستا د وروځو په محراب دے
خوند کوي جانانه ! که هر څو ژوندون خراب دے
پرېږده په ما ګرانه د اجهان د اضطراب دے
اوس که درته وړل زما د دل ښکاري اسان

خیر دے کہ نشہ مې نن په ښکونه شی څه شو
یو نظر د یار که په ژېړ رنګونه شی څه شو
تېر که هغه ښکلی په دې رنګونه شی څه شو
مینه که حاصل د غنم رنګونه شی څه شو
ماته چې حسرت یې د حاصل ښکاری اسان

ماته کوَن همدغه غوړېدلی کتاب ووې
سوز و ساز په اور باندې قطرې د کباب ووې
سوال مې وکړ ځان ته، اسوېلی په ځواب ووې
زده کړه زړه چاودون اول جرس د حباب ووې
هسې د ساحل نه خو ساحل ښکاری اسان

وې مې سبځه ګله ! له پیغامه سر ده وړاندې
دا زړه مې ستی کړه د هجران له درده وړاندې
خوښې مې لمبې دی له خزانه زرده وړاندې
ای وحشته ! ما کړه د کاروان له ګرده وړاندې
پټه که لیلا وی خو محمل ښکاری اسان

ګوره ته ویاړلو او نما ئخونکو د قربت ته
دا کړه راجوته لاروهونکو د شوکت ته
هغو د ادب په لاره تلونکو د رفعت ته
ما ته شوه معلومه چې پښې ایبلود عزت ته
ژواک په دې جهان د آب وګل ښکاري اسان

راشه روژنی شه ای چشتي هوس دې بس کا
خلک د تطهیر د لارې تګ په وربی نس کا
هر سړے د خپلې زړه مې کار تر خپله وس کا
غم د نامرادی چې میډ ول په هر نفس کا
ځکه خوحمزه ته دق او سپیل ښکاري اسان

۲۳/۲/۱۳۶۴

۱۳۶۴/۶/۲۵

## ۱۷

په بهنده تکوین کښې د طوفان راغلے یم
په زړه کښې د ایشیا "دارالایمان"[۱] راغلے یم
منشا د لوی ښتن وه چې افغان راغلے یم
یوګل یم د افشا په ګلستان راغلے یم
خندان راغلے یم څکه پریشان راغلے یم

---

(۱) علامه محمد اقبال لاهوری به افغانستان ته "د ایشیا زړه" خطاب کاوه - او د شرق د بېدارۍ او د عالم اسلام د وحدت ستر لارښود، لوی نابغه سید جمال الدین افغانی به افغانستان ته د "دارالایمان" خطاب کاوه -

ماوې چې نه ما ژوند به وي مرهون د مناعت
په خپله پښتونواله کښې رانغښتے زما پت
دا لوړې او ژورې وسیلې وي د رفعت
نفرت هم په الفت کښې وو یو جزد محبت
اشنا چې اوس خبر شوم پښېمان راغلے یم

د یار اشارتونو مې کړه مینه یو په سل
بې سوزه بې ګدازه مې زړګے نه شي تسل
د مینې اشارې وې، وو نظر د حبیب مل
دعوت وو ستا د حسن، وو رهبر د رقیب پل
ستا در ته زما یاره په چشمان راغلے یم

یو روح لرم، یو زړه او یو مې ځان دے ګنې زه
خپل یار مې د دې درې قوو سلطان دے ګنې زه
چې څه مې سود و زیان دے د جانان دے ګنې زه
عزت د لېونتوب رابانديې ګران دے ګنې زه
څوڅو ځلې د رشل ته د جانان راغلے یم

انسان یې کړو پیدا چې یې عزت کړود بنایست
بیا زه یې کړمه جوړ چې یې صفت کړود بنایست
په د وو سترګوا حسنو یې رفعت کړود بنایست
حاصل له دېرو بنکلیو مې وحدت کړود بنایست
کثرت د بنکدې نه مسلمان راغلې یم

په غوښته او طلب کښې د زړه سترګې وې رنها
د یار خوږ اثړې نظر وې تل زما په خوا
پېږنو د یار نه ځارشم چې نظر یې وې په ما
محفل کښې که ستا سترګې همه سترګې دې اشنا
زه ستا د مستو سترګو په ارمان راغلې یم

که ګورې زما خوا ته زه په څه وکړم پلمه
دوه سترګې پټوم او په خوله وایم توبه
ادب د عشق په لار کښې د ژوندون ګنه توښه
مېزبانې سترګې پوه کړه چې خوې نه کړې د مېلمه
مېزبانه د خوبۍ زه دې مهمان راغلې یم

ستا فکر او ستا ذکر زما زړه کړ ارجمند
نن ستا په مخ کومه زه د عشق لوړه سوګند
چې ماته یې لېمه دی خدایې مه کړه نظربند
الفت چې کړو ګلشن د تجرد راته څرګند
خوشبوې غوندې له هرڅه ګریزان راغلی یم

بسکلا ستایه ای عشقه مبارک دې آئینه
ما وازمایه ای عشقه مبارک دې آئینه
بیا وازمایه ای عشقه مبارک دې آئینه
د روایې خله ای عشقه مبارک دې آئینه
حیران له کوره لاړ ومه حیران راغلی یم

بلل او لار بنودل د مهوشانو وو فطرت
"چشتي" چې محبت مې د خوبانو وو فطرت
کاته او نه کاته د دلبرانو وو فطرت
"حمزه" چې مې الفت د ګلرخانو وو فطرت
بلبل غوندې له ځایه غزلخوان راغلی یم

۱۸

پښې مې د اشنا په لور رواني دی
اوښکې ځځیدې چې نکته داني دی
یار ویل دا ولې پرېشاني دی
نورې قصې وایه چې اساني دی
پرېږده د الفت خبرې ګراني دی

زمکه دانه پالی د لوېدن په وخت
لور راوړی فصلونه د رېدون په وخت
خوا خلاصوی سین د غرقېدن په وخت
رامې شی لېمو ته د دېدن په وخت
اوښکې څه ناپوهې رقیباني دی

درد اعلانوی وچ د لړګی رباب
سوز، ګداز او اوښکې وی د سیخ کباب
وینمه په تاک کښې د انګور شراب
سترګې مې لوستے شی د فطرت کتاب
مخ ته د اشناچې شی امیانې دی

دغه یار زما منلے انتخاب
بې له دې زما د هیلو نښته باب
وی چې د اشنا له خوا هغه ثواب
غم د هجر یو، رټل یې بل جواب
داسې مرض، داسې دوایانې دی

غم، غصه او اوښکې چې راخوټېږي شی
مخ تر بلا د روهی د وراندېږي شی
مستې په دې لاره کښې دروېږي شی
ستا د جلب شوق یې وی راپېښېږي شی
دا مې که سلګی دی خومهمانې دی

زړه مې ټټولے او لېونے ولې ؟
نه شوم ستا په درکښې سپېلنے ولې ؟
ژاړې به لا نه د قلم نے ولې ؟
ګران شو هسې ستا د وصل مے ولې ؟
تل چې د عاشق وینې ارزانې دی

واوره «چشتي» سم د پوهېدو یې اوس
درکښې د جانان د درېدو یې اوس
ژاړه ته د اوښکو بهېدو یې اوس
ښکارې چې «حمزه» په زړېدو یې اوس
لا دې چې جذبې له ځوا ځوانې دی

۱۳۶۴/۷/۲

۱۹

په مقناطيس د چا کښېږم څه ليد ے نه شمه

د چا په لوری ځمه دريد ے نه شمه

اروا او زړه مې ورسره دی بېرته تلے نه شمه

د زولنو په پرانستو راضی کېد ے نه شمه

همدمه بېرته شه له ما چې لبو ځ نه شمه

د عاشقۍ ډکرته داسې لاس په نام راغلے

په بېرته نه ځم د يار غولی ته يم تام راغلے

عشق به مې پوخ کړی که هر څو يمه زه خام راغلے

په محبت کښې اوس اشنا دا څه مقام راغلے

د تصور په سترګو هم درته کتے نه شمه

ای د جانان د محبت سرو تودو باد ونو
له خاطرو څخه مې ډک مست او څپاند راد ونو
اشنا اشنا شوې مهربانه خو په زړه چاود ونو
ای د اشنا د پخوانۍ مینې زلمو یاد ونو
هسې رانګ موشه پکار دے چې زلمے نه شمه

په تصور کښې دې اشنا څومره بې شانه یمه
چې خیال دې پښه راڅخه ونیسی ستومانه یمه
که ستا په لوری نه ځم هله سرګردانه یمه
په محبت کښې هسې هېر له خپله ځانه یمه
لکه چې خوب د لېونی رایادېدے نه شمه

په ژوندانه کښې به جانانه زه تا نه کومه هېر
د تا له پاره همېشه ترمال وسر یمه تېر
د عشق پنجې ته نه کېد ای نه شی که پړانګ وی که شیر
زه حادثو ته مقابل یم د مردانو په څېر
لکه د پل به شم فنا خو پاڅېدے نه شمه

لاس کښې دې ږمنځ اوهنداره دې تورکچل خو کوې
تورې بلاوې به راپاڅوې څه چل خو کوې
ماته دې جوړه ده پوهېږم غابښ چیچل خو کوې
ما وته بشکلیه په ساړه نظر کتل خو کوې
خوفکر بویه چې دې چېرته د زړه سوے نه شمه

بانه مې تاته مخامخ وو درکتے مې نه شو
نفس مې ورو سینې ته ننوت وېستے مې نه شو
اواز مې هم په زړه کښې تېت شو جګوے مې نه شو
زه به د تانه شرمېدم چې درکتے مې نه شو
اوس چې درګورمه له ځانه شرمېدے نه شمه

په اسمانونو کښې د ستورو ناست په کټ یمه زه
جوش او نشې مې موج وهي د مېومت یمه زه
خپلې داڼې نیني ګوم ناست لکه بت یمه زه
د خپل شعور ګنهې پردې دې یکښې پټ یمه زه
یمه په څو رنګه ظاهر خو پېژندے نه شمه

خپل ځان لیدے نه شمه ګواکې مردمک یمه زه
د ښو او بدو ښکارند وی روښن محک یمه زه
نه اوراوبه یم نه پیرے او نه ملک یمه زه
ستا په ښکلا کښې به شامل لکه نمک یمه زه
څوکه دې تریو راته تندے وی بیلیدے نه شمه

چې پټ په تاک کښې حس کولے شم نشه او مزه
ګوندې په کون کښې ثابت شمه زه سمه پرزه
«چشتي» د عشق ماجرا ولیده پرې باغله لړزه
ستا غلامي قبوله کړې وه بې د امه «حمزه»
بلا دې واخلمه د زلفو خرخښیدے نه شمه

۱۳۶۴/۷/۱۳

## ۲۰

ترد ام دې ځار شمه يم پوه د زولنو په ژبه

ستر ګې دې ست راته کوي د اشارو په ژبه

خوښه باور نه شي کېد ے د ليونيو په ژبه

ماته ډيوې دی رابنودلی د سلګو په ژبه

چې يادوم دې هر سحر د اسويلو په ژبه

متاع د ژوند خوبه مې اخلي قافلې اخلي

يوځو لې وسه تاته څه دی پر ګنې اخلي

د زړه کتاب مې ياره ته لې دوتنې اخلي

ساده خونه لې خوځيا مې جوړله خولې اخلي

ډېر مې خواستونه درته وکړه د ليمو په ژبه

بدان په بده زانګو زانګي پښېماني نه کوي
پاسبان نځان د ے هر سړی خو پاسباني نه کوي
د ژوند بهار تنکے تړپېږي خو ځواني نه کوي
وختونه هم د حقيقت ترجماني نه کوي
راځي نقطې جدا جدا يې د لمحو په ژبه

ناصحه ! تا خو ګوره کړې ده په ما توبه
په مال وسرکه شي حاصله ده وړيا توبه
په توره شپه مې توبه کړې په رڼا توبه
ما خو واعظه توبه کړې واخله بيا توبه
اوس خو توبه کولے نه شم د توبو په ژبه

په صراحت وايمه هم په رمازه وايمه
تر تا دې ځار شمه ځوځله زښته بنه وايمه
په زړه خو وايم هميشه نن يې په خوله وايمه
د محبت د تصرف به درته څه وايمه
وی د سبا په خوله چې څه مې وی د شپو په ژبه

اوس برملا شوکه هرڅوک ورته غوبر نه ایښود

نن هویدا شوکه هرڅوک ورته غوبر نه ایښود

"چشتی" پرما شوکه هرڅوک ورته غوبر نه ایښود

"حمزه" رښتیا شوکه هرڅوک ورته غوبر نه ایښود

هغه دروغ چې به راتلل د وسوسو په ژبه

۱۱، ۱۱، ۱۹۸۵

۱۱، ۱۲، ۱۹۸۵

## ۲۱

هیله من یم ژبنتیا کېږي فال زما
ښکارد دوکونو پرې کېږي جال زما
د واړه کونو کښې وېږي قال زما
چې هیڅ نه دے مقدر مآل زما
د امکان او ما یکون دے مال زما

شهامت مو ازمېښت کړه واخله تله
سرښندنې ته سیالی کړو یو له بله
ژه به ورهه خپل مزار ته شمه بَله
په تسلیم مې حال ته راشه مستقبله
له ماضي چې خراج اخلی حال زما

ژوند او مرګ زما پرېوللو ته ربته شوه
چه کونين مي د مزله يوه تبوته شوه
دا نړۍ له ما نه څکه خوا پته شوه
له ازل نه تر ابد يوه جوته شوه
اوس راستون دي شي د فکر تال زما

دا سپوږمۍ په ننداره زما د بخت ده
عنصري د دغه دهر راته رخت ده
که زه نه يم دا نړۍ خولوځه لخت ده
کاينات يوه لمحه زما د وخت ده
د قدرت يوه لمحه ده کال زما

ښايستوب په ګزاو کچ او په تول نه دے
مدعا له فقره ګند او کچکول نه دے
د بلبل د نغمي خوند څه په نول نه دے
د دنيا د ناوي حسن په پسول نه دے
په تندي يي دے د وينو خال زما

بحروبراو کاینات مې تصویرات دی
ډېر او لږ، سم او ناسم مې تقدیرات دی
د سمون په لوری ټول تدبیرات دی
نه هغه یم نور همه اعتبارات دی
له خپل ځانه د ے کمال زوال زما

سیوری کوری چې د سمو کږو ښکاری
لاس په لاس کښې د پستو او ځیږو ښکاری
څه نغمه چې وی خوږه په غوږو ښکاری
هغه کند چې د فقیر په اوږو ښکاری
هم په سر د امیرانو شال زما

راښکاره چې هنداره د خپل وصال کا
نوری لارې مې په سترګو کښې وبال کا
په رښتینې اندازه که مې فعال کا
ننداره مې په جلال کښې د جمال کا
چې ځبلی دی هرڅوک جلال زما

## ۲۲

زما په ويښه په ويد وکښې ته یې
تل مې په سترګو په ښو کښې ته یې
ښایست چې وینم په کتو کښې ته یې
چې مې په زړه کښې په لېمو کښې ته یې
ځکه زما په ورځو شپو کښې ته یې

لاړه دې سپرمه لوېدے دې شمه
دغه هم تک دے پرځیدے دې شمه
ته ډیر جوت یې پېژندے دې شمه
درکتے نه شم خو لیدے دې شمه
زما د سترګو په ککو کښې ته یې

د جلاوالی د سَین نه یمه
هجر ځپلے د ښَین نه یمه
له پردی بوی څخه بوین نه یمه
زه د هر یو ښکلی مین نه یمه
خو د هر یو په مسیدو کښې ته یې

زما د عشق ته سرچینه یې اشنا
د زړګی چیغه رښتینه یې اشنا
دواړه به یو یو، یو ته نه یې اشنا
که مسلسله قهقهه یې اشنا
د صراحیو په سلګیو کښې ته یې

مینې د یار ته توده ولې وایې ؟
ضبطِ نفس ته پرده ولې وایې ؟
رسوا ناسور ته ګنده ولې وایې ؟
مینې ته خلک رنده ولې وایې ؟
ښکلیه ! مدام چې په پردو کښې ته یې

چې د ناز و عجيبه خوی لرې ته
د تماشو عجيبه خوی لرې ته
بيا د توبو عجيبه خوی لرې ته
د دلاسو عجيبه خوی لرې ته
هم مې د زړه په تلوسو کښې ته يې

اوښکې سلګۍ مې دې تازه اوسی تل
د باغ غوټۍ مې دې تازه اوسی تل
تبه نرۍ مې دې تازه اوسی تل
د زړه پولۍ مې دې تازه اوسی تل
خوښ چې په دې ښکليو کيږدو کښې ته يې

مينه کوم مينه وړيا وينمه
"چشتي" په زړه کښې دې غوغا وينمه
زه دې د سترګو تمنا وينمه
"حمزه" په زړه غوکښې هم تا وينمه
هم په ټولې د ليونيو کښې ته يې

۲۳

ستړګې مې زړه يووړلې نوتاته په کاته يمه
ماته خوتول ته ښکارې او ماپوښتې چې څه يمه
اوس نو ماپه خوله به څنګه د اراشي چې زه يمه
زه په خپل محيط کښې چې د هرسړي په خوله يمه
بل به څه سبب وي بې له دې چې ستا په زړه يمه

ورک يمه له ځانه د کونډيو افسانه يمه
کله ليدے نه شم د بلبلو ترانه يمه
دا ده رابخښلې بهانه يم بهانه يمه
زړه راپورې مه تړه له هرڅه بېګانه يمه
يم د ځان په ځبرمه سبا يم او بېګانه يمه

ښه ښکلے تقویم یمه پیدا له خپل هنر نه یم
دلته یم راغلے خو یم پوره په خپل وزر نه یم
هر څه په ما وینی ولې ځان ته زه سحر نه یم
بد یمه که ښه یمه د دې نه هیڅ خبر نه یم
دا خو ستا په خوله کښې دی چې بد یمه که ښه یمه

هیڅ کولے نه شم بې له دې چې حوصله وکړم
ځم روحانیت ته چې دا خپله فیصله وکړم
تنګ شوا و د برتنګ شو زړه مې غواړی ولوله وکړم
ښایی په صحرا د بې ننګۍ یوه نعره وکړم
ګوره که څه یوه شم چې دا یم او که دانه یمه

کوز او پاس چې ګورم ما خو ټول وته خندلی دی
څوک که راته ګوری ما هیڅوک کله رټلی دی
ولې خوشحالتیا کړم ما له ځان سره ویلی دی
نن بې بورا سترګو په مستۍ ما ته کتلی دی
سر لکه نګهت په بې طرفه الوتۀ یمه

ښه او ښایست د واړه شو زما نو وایه ته څه شوې؟

حسن او ښېګڼه مې له تا نو وایه ته څه شوې؟

جوړ دې کړم په ښه صورت مولا نو وایه ته څه شوې؟

ښه چې همه زه یمه اشنا نو وایه ته څه شوې؟

وښکاری خپل ځان راته چې تا ته په کاته یمه

زه به آیینه یمه ښایست به د بل چا ښکاری

ځیر شو خپل ضمیر ته نو "چشتی" نه څه رنا ښکاری

حسن د محسن د ے خدایږ وهسې چې په ما ښکاری

دا د قدم نخښې خو "حمزه" راته زما ښکاری

خدایږ ده په دې لاړې به تېر شوے کله زه یمه

۱۳۶۴ / ۱۰ / ٦

۲۴

چاوي چي هر شی ته تلوار کومه
زه د رښتوني واري خار کومه
له خپله لاسه څنه پار کومه
وار مي راغلے د ے خوار کومه
څنګه کار ونه د هوښيار کومه

د حقيقت وار ے خطا نه لري
څېرمه د ښو کړه انتها نه لري
د لاړي ستونځي څه پروا نه لري
لوړي ژوري څه معنا نه لري
زه چي د سيند غوندي رفتار کومه

په موانعو کښې ایسار مه اوسه
ته پښتونواله کړه بادار مه اوسه
عمل کوه خالي ګفتار مه اوسه
ښکلیه زما په انتظار مه اوسه
زه لا وزګار نه یمه کار کومه

د نتیجې شنکرې پسته به وی
بیا د مېلې اترې پسته به وی
د خوشحالۍ سندرې پسته به وی
ستا د راتګ خبرې پسته به وی
زه لاخپل ځان ته انتظار کومه

فغان چې غوره له زارۍ دے زما
ناتسلیمي له هوښیارۍ دے زما
توکل هم له بېدارۍ دے زما
دا برکت د بې لارۍ دے زما
چې په بې لاره کښې هم لار کومه

په سختو ستونځو ایسارشوے یمه
خو له خپل یاره ځنې جارشوے یمه
د ے مې ړاکاږی په لاره شوے یمه
په خپله خوځله ښکاره شوے یمه
اوس خطا کیږی نه چې ښکاره کومه

په اور د هجر سوځیدلے یمه
په کرشمو یې نازېدلے یمه
په اشاره و یې خندېدلے یمه
په تال د زلفو زنګېدلے یمه
اوس به له داره و لې ډار کومه

زړه او روح دواړه په خوښۍ درکوم
دغه اسناد به د یارۍ درکوم
سر به جانانه په سیالۍ درکوم
درته موقع د بې لوزۍ درکوم
چې په وعده دې اعتبار کومه

د بلبل چیغې له ګلزاره ووې
هم یې له عشقه هم له ناره ووې
«چشتي» بې واکه او ناچاره ووې
«حمزه» غزل مې بې اختیاره ووې
ولې لیکل یې په اختیار کومه

۳۰, ۱۲, ۱۹۸٦

## ٢٥

پام چې دې شو ماته تلولې شوې د تاسترګې
چل څه دی؟ پخوا به دې موسې شوې د تاسترګې
نن چې درته ګورمه زهرې شوې د تاسترګې
ولې پښتنې داسې پردې شوې د تاسترګې
څرنګه نقشه د بې پتې شوې د تاسترګې

پام یې ماته نه وو دا له ځان سره مسکۍ ده
ماویل ای خدایه! دا دې څه سپینه سپوږمۍ ده
مسته په مستیوکښې تاوې یوه کبلۍ(۱) ده
ماخو وې چې لا یې پېغلتوب کې څه غوټۍ ده
یو نظر مې څه وو چې زلمې شوې د تاسترګې

خوند ځومره پکښې وو اوخوبونه هم پکښې وو
لومې تنها نه وې کمانونه هم پکښې وو
خوب یواځې نه وو چې خیالونه هم پکښې وو
غشي هم پکښې وو مرهمونه هم پکښې وو
ته چې په شا لاړلې مسکۍ شوې دتا سترګې

څه به وایم خلکه هغه څه چې په ماتېردی
سیمه ده بې حاله که هرڅه زما په خبر دی ؟
ځومره چې ووایم لا بس نه دی هغه ډېر دی
روغ نه وم په خپله څه مې ووې رانه هېر دی
یاد مې دی بس دا چې لېونۍ شوې دتا سترګې

زړکه لټومه هوادار نه یم د چرګو
سریم په صحرا او په ځنګلونو هم په درګو
ځیر به ورته ګورم ګوندې ووینم په سترګو
تاته به اوس ګورمه اشنا دتا په سترګو
راغلې په لېمو کښې مې ککۍ شوې دتا سترګې

تل دیار په شونډو هر عاشق ته دوعانه وي
بې دیار له لطفه به چشتي ته شفا نه وي
غم راکړه اشنایه پرېږده غم دې دتا نه وي
بیا دتا حمزه به بېنوا بېنوا نه وي
چېرته که دې خوار ته پخوانۍ شوې دتاسترګې

۱۹۸۶/۳/۶

---

(۱) کبلي هغې د هوسۍ کوچنوټي لور ته وايي چې مستې پکښې اخښلې وي او ډېره دلېدو وړ وي، سترګې نه پرې مړېږي .



## ۲۶

حسن خو ړنا ده زه ړنا ته رسېدلے يم
بشکليه پوهه نه يم چې زړه چاته رسېدلے يم
روح مې په خوښۍ ده زړه به تاته رسېدلے يم
اوس ايله دمينې ابتدا ته رسېدلے يم
زړه چې د ادراک و منتها ته رسېدلے يم

ما غونډې دې درته ډېرې په سر پراته توبه توبه
څنې خو بسمل وې مات وزر پراته توبه توبه
ټول په زړه ويشتلي کنډ کپر پراته توبه توبه
ستاد هغو برنډو سترګو بر کاته توبه توبه
څومره بوګنبدلے ، تپرېدلے ، څورېدلے يم

غم دې له لېمو سره اشنايه داسې کړ وکړ
ويارمه جانانه چې دې بيا ړاسره تړ وکړ
اوښکو مې له سترګو ملغلرو ځنې لړ وکړ
نن دې په محفل کښې د اشنا غوندې ګړبړ وکړ
زه دې په دې نوی غيريت ښه پوهېدلے يم

ورک دې شه غمازه ټول چل ول دې حبطه ووتل
عقل او تدبير بندی په تار د سفسطه ووتل
روح مې ستا وصال ته يار زه څه ښه واسطه ووتل
ښخ د زړه قدم مې ستا د مينې په نقطه ووتل
څه که هم پرکار غوندې چاپېره ګرځېدلے يم

خاورې ستا د لارې مې په سترګو کښې توتيا کړې
اوښکو مې نن سترګې ستا په لاره کښې رڼا کړې
عشق مې سور انکار دے ته يې هم په تماشا کړې
ښه شوه ګله ښه چې زما اوښکو په خندا کړې
زه که ترمې ترمې د شبنم غوندې لوېدلے يم

ما چې ځانته بېرته د زلمو په سترګه وکاته
سم مې زه یار زحمت د مېړنیو په تله وخاته
بنه مې نن رقیب د اشارو په ژبه وناته
تود مې د پښتو ادب محفل هم ځکه وساته
زه لکه د نمر چې تل په خپله سوځېدلے یم

لاره مې وهله ها زما دا هوښیاری وه تل
خوب خندا په مینه کښې بېداره بیماری وه تل
غم چې به یې راکړه هغه څه خوږه یاری وه تل
مله د انتظار سره زما نا امیدی وه تل
هم به مې شوګیر وو هم له خوبه زګېدلے یم

بل چا ته په طمعه خدایږو هیڅ زه ټیټېدے نه شم
بې د یار له لوری بلې خواته کړځېدے نه شم
څُم د یار حضور ته خلکه ! ځکه ودرېدے نه شم
ستا د هندو زلفو په ځنګل کښې ورکېدے نه شم
زه یم روهیلے په پښتو نخوا کښې زېږېدلے یم

چا راته ویل اشنا خفه دے اوس به تا ره نتی
څوک مه شه ای خدایه ! چې اشنایي په غوغا رمتي
وایي "چشتي" یار مي دے خواشینے ځکه ما رمتي
ما "حمزه" به خود په سترګو سترګو کښې اشنا رمتي
نه په ډېره پوهه کښې ناپوهه پوهېدلے یم

۱۳۶۵/۱/۱

۲۷

په خواکښې مې خاموشه کړځېد و اوځه يې نه وې
غمزن يې ولېدلم څوړېد و او ځه يې نه وې
فرياد مې په غوږونو واورېد و اوځه يې نه وې
شايد چې په جواب به شرمېد و اوځه يې نه وې
په شايې راکتل په مخه تلو او ځه يې نه وې

د عشق د مرغوب او عظمت نه به ځه وايم
د دې ډکر د رزم او شوکت نه به ځه وايم
د مينې د اخلاص او برکت نه به ځه وايم
د مئ د خوشبوئ او کرامت نه به ځه وايم
واعظ زمونږ په خواکښې تېرېدو اوځه يې وې

ادب له تا زده کېږي نادانۍ کښېږي ولې ښکارې
هرڅه کوله شي ته ناخوانۍ کښېږي ولې ښکارې
په حسن او خوبۍ په حیرانۍ کښېږي ولې ښکارې
ما وې کله خوشحال په پرېشانۍ کښېږي ولې ښکارې
ورو ورو یې څوړند سرکړو خندېدو او څه یې نه وې

د عشق د غه دستور دے چې د یار په مینه پایه
یو لورے مې د یار قاصد ته وتاکه له رایه
که ګورم چې یو کس دورې راځي ښکاري له ورایه
قاصد ته مې له ورایه وکړو غږ چې هله وایه
ورو ورو راته راتلو په موسېدو او څه یې نه وې

په خوب په بیدارۍ کښېږي زه او تل د یار خیالونه
د یار سترګې خمارې ښکارېدې دوه بادامونه
دوه شونډې تکې سرې وې تا به وې چې دوه لعلونه
حسرت زما په سترګو کښېږي کول ورته سوالونه
ساده لکه ماشوم شو پوهېدو او څه یې نه وې

جانان د حسن بهنده داستان په غمزه وکړو
«چشتي» د عشق له رعبه دا بيان په لړزه وکړو
اسمان کښې ستورو يو بل ته، سترګک په مزه وکړو
تفسير د انفعال ورته همدمه «حمزه» وکړو
بس نم يې له ليمونه څڅېدو اوخه يې نه وې

۱۰/۹/۱۹۸۶

۲۸

په اشاره وکښې دې زما د زړه خندا پټه ده
ستا په ککیو کښې زما د زړه ژړا پټه ده
په توره شپه کښې ګویا سترګې د سبا پټه ده
ستا د ستم په انتها کښې ابتدا پټه ده
زما د زغم په ابتدا کښې انتها پټه ده

نظر مې ستا حضور ته داسې تلولے شي اشنا
طواف دې غواړي خوله خونده لبونے شي اشنا
بې اختیاري وي هر یو کار مې خندنے شي اشنا
په انتظار کښې مې قیام کله راتلے شي اشنا
په هر یو خُمب کښې د بڼو یوه بلا پټه ده

شان و شوکت راز د خوبۍ خومکمل دے ستا
څه چې خوبان لرۍ اشنایه یو په سل دے ستا
حسن وښایست خو ځانته ځل په پل دے ستا
دا تجاهل د بې لوزۍ رد عمل دے ستا
ستا د ظاهر په بې پتۍ کښې خو وفا پټه ده

دا تنګ راتنګ مرګ او ژوندون دا سلسلې نه وینې
دغه بې ساری بهیرونه قافلې نه وینې
جاری طوفان او حادثې پستې ځېږې نه وینې
دا تغیر جوړ د هستۍ پرله پسې نه وینې
دا د ژوندون نه بې خبر وایې قضا پټه ده

په تور ماتم او توره شپه کښې ته رڼا ښکارې
که جهان دړې وړې پروت وی بې پروا ښکارې
چې زړه وتاته هڅه کړمه ته په ما ښکارې
څه چې زه وایمه څه چل دے ته رضا ښکارې
لږ خو مې یوه کړه په کوم کار کښې دی رضا پټه ده ؟

سخته جړه ده بارانۍ چې په ما اورې ږلـــې

په بام که وګورمه تا په سر پرانستې بـــلې

ما ستا ولور ته له اوله ده پرانستې کلې

کوڅې ته ستا د حمزه سترګې نیم پرانستې کلې

لا دې پرانستې زلفې نه وې ؟ که سبا یې ده

۲۲، ۴، ۱۹۸۶

۲۹

غم دې صحرا ته بنه اولاغ راکه
سبک د طلب دې غره او راغ راکه
ځان پخوم زړه مې اوجاغ راکه
اور د نغمې چې په زړه داغ راکه
ربه دی د حسن روڼ څراغ راکه

ژوندونه ستا په پخکی سودا
دا زن مې جوړه بخښکی فردا
شوه هره پېښه شوغکی درد ا
فطرته ستا په غلچکی خندا
څه په ژړا زړا دې باغ راکه

عقل او احساسه کوېښونې وکړي
خیر د ے که هرڅوځورونې وکړي
وېناوې ستوغې او اغزنې وکړي
ورکوخوبونو غزونې وکړي
چې مود ویېنں اشنا سراغ راکه

بیا دې څه وې په ړپولیو لبو
ها د کوثر په اوبو وللیو لبو
په قرآنی آیت لوستلیو لبو
ستا دې شیرینو غریو نیولیو لبو
څه په خنداکښې تریخ ایاغ راکه

رانه شوې ورکې د مستۍ توتې
وسوې ایرې شوې د پستۍ توتې
کوندې پکار شی د سختۍ توتې
اوس په خنجر شی د نیستۍ توتې
بند د هستۍ نه یې فراغ راکه

سرخېل که ته یې د خوبانو اشنا
ځانته ادب د ے د رندانو اشنا
خوشبویي اخلم له زلفانو اشنا
غافله مه شې له زلفانو اشنا
مالره هم یې څه دماغ راکه

«چشتي» دیار په لوري تلو ربړدی
عاشق د عشق په مزلو ربړدی
چې ورنږدې دے یو په څو ربړدی
«حمزه» وزرې د کرکو ربړدی
ماله عادت یې که د زاغ راکه

۲۳، ۴، ۱۹۸۶

۱۳۶۵/۲/۱۰

۳۰

ثبت په زمان او په مکان یمه زه
بې بدرګې غوندې کاروان یمه زه
غبږ د جرس غوندې پرېشان یمه زه
حیف دے چې نن هغه افغان یمه زه
چې په خپل قام باندې تاوان یمه زه

سر مې په ستوڅو کښې بلا لټوی
طاغوت د روس څکه په ماماتوی
په فولادینو ضربو ما تکوی
څو چې کوزار خوری هومره لا شی قوی
ما خو به وې هغه سندان یمه زه

خپلو میرو ته که دریاب نه شومه
یا بدو سترګو ته حجاب نه شومه
د شیطان مرمینې ته شهاب نه شومه
په لیونیو کښې هم حساب نه شومه
هسې عبث ځیرې ګریوان یمه زه

جهانداری جهانبانی مې څه شوه
خوږه خپلوی قدردانی مې څه شوه
هغه ښایست هغه ځوانی مې څه شوه
هغه ساده مسلمانی مې څه شوه
د ائینې غوندې حیران یمه زه

د هما هسک هسک سیوری اوس هم لرم
کارنامې د پېړې نورې اوس هم لرم
نرۍ نالوستې تورې اوس هم لرم
خونه ځلانده ستوری اوس هم لرم
په لوړ همت لکه اسمان یمه زه

طاغوت ځبونکے هسې شان ښکارم
د ښمن وهونکے پهلوان ښکارم
روس ماتوونکے زړه افغان ښکارم
په تغیر کېښې که مکان ښکارم
خو په تمکین لکه زمان یمه زه

تېره د حق به اوس درنه کېږدمه
خدای ته به دغه فیصله کېږدمه
لاس چې د توري په قبضه کېږدمه
څنګه حالاتو ته وسله کېږدمه
وایه! انسان او که حیوان یمه زه ؟

اسلامي خوی او عقیده پالمه
افغانیت او غیرزه ساتمه
دغه شعار دے د"چشتي"عالمه
د نن سبا په ګیر کېښې نه راځمه
بس د ماضي غوندې روان یمه زه

١,٥, ١٩٨٦

٣١

ستا خواته د رحم په الواته دې کړم
ښه دې کړمه خدایه و بلد ښه دې کړم
ځار دې شم له سترګو چې راځه دې کړم
تېښتې مې له زړه چې راپه زړه دې کړم
زړه ته مې راځې چې را په خوله دې کړم

یم چې دې په سترګو کښې ما نه وینې
چا هم درته ووې چې دا نه وینې
څه وکړمه یاره که ما نه وینې
تا ته مخامخ یم خو ما نه وینې
داسې راته ښکاري چې لیمه دې کړم

سیخ درتلمه تاته په کتوکښې وم
تیرچې شوم په بیرته راکتوکښې وم
ستا نظر نیومه زړه په تلوکښې وم
لیږ ساعت اول دې په لیموکښې وم
اوس چې پکښې نه ښکاره مه څه دې کړم؟

نن در حُمه یاره په نخاکه نه؟
کوندې به دې زړه کړمه پخلاکه نه؟
خپل دیدن به در کړمه ورپاکه نه؟
ماته دې شوه تنده د ښکلا که نه؟
برند دې راکتل اوبه دې کړم

تاچې د ښایست کرشمې چتې کړې
حسن دې همزولې ټولې ختې کړې
سر دې غواړوه زلفې دې کوڅې کړې
لوخ دې کړه بارخو زلفې دې پټې کړې
سیوری دې پناه کړه په غرمه دې کړم؟

نشته زړه مې نشته چې چا يووړلو
حسن او ځواني دې له ما يووړلو
څه چې مې درلوده خوتا يووړلو
ته يې رانه يووړې چې تا يووړلو
راکړه هغه زړه چې راپه زړه دې کړم

پورته دې د خيال کړمه رفعت هسې
وياړمه سرلوړيه د عزت هسې
بهنده جاروځم په شفقت هسې
غم کبنې کله ستا لکه نکهت هسې
خدايږو د جامونه په واته دې کړم

بيا به "چشتي" وايي په مزه اوچت
درد د اشنا بيا کړم په لرزه اوچت
خوب وينم له لمره يم نېږه اوچت
نن خود فلک نه يم "حمزه" اوچت
عشقه چې دا سر په زنګانه دې کړم

۳۲

د تانه ځار شم که دې څوک بشکلي کاته ووينې
هوس وهلې که د تا چېرته بانه ووينې
ګويا تيار غشې په ګرُت کښې پښتانه ووينې
رقيب چې ما سره اشنا چېرته په تله ووينې
لکه داړلې لېونې سپې چې اوبه ووينې

د زړه اسرار به مې څوتلې د ګومان په تلې
ماته په زړه کښې ته ځاى راکړه که ماوياړې ګلې
د عشق اعمار به کيف د سوز کړې نه د خاورو سلې
ډېرې ډيوې مې همدمان که په مدفن کړې بلې
کله کيدے شي چې داغونه مې د زړه ووينې

د خپلو ړبړو تړریدو یوه خامه جوړه وم
د زړه او سترګو، خولې به ځانته ډرامه جوړوم
سفر د عشق مې د ے په مخ د اورجامه جوړوم
ورځمه نن بې په محفل کښې هنګامه جوړوم
پرېږده چې نن مې دا شلېدلے ګرېوان ښه ووینی

که امیدوار د خوږ دیدن یې شی بې ځایه نه وی
حیر او حیران د ښکلی تن یې شی بې ځایه نه وی
یار ښایسته د ے که مین یې شی بې ځایه نه وی
بیا په تراخو که ګیله من یې شی بې ځایه نه وی
چې کوم مین د کومو سترګو نه خوارړه ووینی

سترګوته وایمه بې ړ ما له ګرانه هیڅ نه وینې
بې له جانانه نور له ټول جهانه هیڅ نه وینې
ټول چې ښایست د ے بې دده له شانه هیڅ نه وینې
نه چې په خپله بې له خپله ځانه هیڅ نه وینې
وایه بې تانه که بل ګوری څوک به څه ووینی ؟

ماته به تل خپلو دوستانو کړله ست او سلا
دا سخاوت به حمایت شي درته جوړه کلا
له بې مهرۍ او بدبینۍ بزره نښته بلا
پښتون اشنا دې حجره بنده کړي دخپلې ښکلا
غوټه جبین شي لکه شوم چې مېلمانه وويني

سپینې خبرې، سپین ويل غواړمه نورمه کښه
یاره مې راغلې وو"چشتي" وایه نورمه کښه
پیالې د ناستو مشتاقانو وي ته سپورمه کښه
هغه کرم وي د ساقي د میو زورمه کښه
پیاله په لاس که څوک "حمزه" په پرېواته وويني

۵، ۵، ۱۹۸۶

۳۳

تا پېژنم، پېژنمه ځان په تا
تېر مه شه دا بشکلې بنه دوران په تا
پروت يم په بېديا نه يم تاوان په تا
خير که زه اوس خومره يم ارزان په تا
پسته به هم دومره شمه ګران په تا

زما بلاوې ياره په ځان مه اخله
ګل مې له باغچې د خزان مه اخله
ګرانه بدنامي د جهان مه اخله
ماخله، د وفا امتحان مه اخله
دا به زما هم شي امتحان په تا

ته چې یې راغلې پسرلې زه ما
زړه مې ټوپ وهی لکه کبلې زه ما
وله مې په عشق د تریلې(۱) زه ما
پرېږده بوګنبد لې اسوېلې زه ما
ګوابن به دې نور جوړ کاندی توفان په تا

مه وې عاشقان په بدحالی کښې بیا
دوو د اخلاص ښکاری په یاری کښې بیا
سرکه مې قبول کړې په د الی کښې بیا
کړې به اسوېلې په بې حالی کښې بیا
زیاد به مې سلګی وی د ارمان په تا

---

(۱) ترینینګ د سلاح او رزم مشق او ممارشې ته وایی.او تریلې د تریلنګ مخفف دے .

معشوقې ته وایی چې د حسن او ناز په غشیو مې وله خو پوخ او د یارۍ وړ شم .

ستا دیدن مې برخه کله کله شو

وزن د خوښی کله په تله شـــو

پام د تا اشنایه بیا په بـله شو

ژوند دې مدامی په برخه هله شو

مره چې شوو"حمزه"غوندې ځوانان په تا

١٠/٩/١٩٨٧

۳۴

زه چې خدای ته یم بنده په جهان څوریم
له ازله عیار شوے په دستور یم
مرحلې د تکامل کړم په مرور یم
ستا د سترګو د صهبا چې زه مخمور یم
ستا دیدن مې دے درمل هغه رنځور یم

هغه خیال چې مې په سر وو نن چا یووړه؟
زړه مې ورک شو اې جانانه که تا یووړ؟
فکر خیال چې راسره وو سودا یووړ
د شعور چې کوم فریب وو فنا یووړ
اوس د عشق له برکته لاشعور یم

سر دې هیڅ چا ته زما په ښکته نه شي
ترجوغې زما دې جوغه اوچته نه شي
دا وینا دې تل زما تربته نه شي
پښتونوا له به زما بې پته نه شي
که ښېلتون وي زورور زه يې تربور يم

چا په ګورو، تورو زلفو کښې څه ووې
هم په سپینو لېچو غبرګو کښې څه ووې
پوه شوم ته وې چې دې زړګو کښې څه ووې
د دیدن په وخت دې سترګو کښې څه ووې
چې اخېستې هم هیبت او هم مسرور یم

یمه نرم چې ته اوسې په شدت کښې
ما له نه ښایي چې اوسم په حدت کښې
ته مې مل ته مې یاوري په جدت کښې
چې احساس دځان لرمه په وحدت کښې
ځکه زه داسې په چوپه خوله منصور یم

د نبات هره ریشه ده په کار بوخته
د حیوان هره حجره ده په کار بوخته
د تکوین هره پرزه ده په کار بوخته
د هستۍ هره ذره ده په کار بوخته
نه به ولې له چا کم یم چې مزدور یم

له ماسپښین او مازیګره سحر ګورم
له تودوخې لتهبدلے شـــــر ګورم
نه به ځان جهان په هغه نظر ګورم
په دنیا کښې له دنیا نه بهر ګورم
جوړ په خیله د خیل ځان ځنې مستور یم

که هر کک ته شومه خیر راته جوړ ور شو
کم زوری نې ومنله نه ور ور شو
پخلا توب مې له تکوین سره هنر شو
چې ذرې شوې سره جمعه جوړ ترې نمر شو
که پریشان وم چې راغونډ شوم همه نور یم

نن"چشتي"هم ځان د خلکو په قطار کړ
بنه پندار او بنه ګفتار، بنه يې کردار کړ
د حمزه"بابا"جوت يې دا شعار کړ
ما"حمزه"که ځان له خلکو څوکنار کړ
هغه هومره په دنیا کښې مشهوریم

۸،۵،۱۹۸۶

۳۵

دا هستي چې وينې معرفت دے د ژوندون
کک او عرش کښې يو شانته وحدت دے د ژوندون
څنګې افاده کړم لوی صفت دے د ژوندون
نه کړی سرکوزے دا طبيعت دے د ژوندون
سر په هر حالت کښې هم اوچت دے د ژوندون

مه کړې چار د چا په شيطاني رشتو تړلے
تل هوا، هوس دے نفساني چارو خوړلے
ژوند، ژوندون پالي، ژوندے هيڅ نه دے شړلے
عمر که همه په حوادثو دے لړلے
نه زغمي فنا چې کوم لذت دے د ژوندون

رمز د خلقت خو ستر ګور ته خنده رو دے
ووړ ښکاری هر ګډ خو په تخلیق کښې یو په څو دے
ښکلے او ښکلا هم یو نسبت د ښه او ښو دے
پټ لګه پسرلے دے خو محسوس په رنګ و بو دے
نخښه د وجود هم حرکت دے د ژوندون

ژوند کښې مقتضا ده خارله ګل سره په ښنک دے
څکه خوار بلبل تل له ازغو په وینو رنګ دے
غربو که ترنم دے ژوند راوېستے له سارنګ دے
خدایېږو چې لباس د کایناتو پرې لنډ او تنګ دے
د ومره بې انداز قدو قامت دے د ژوندون

غواړی چې نغمه ګله شهباز د تار په جنګ کا
څوک یې د پلوشې په څېر مینه ښنګ په ښنګ کا
څوک هم په اور ویاړی بیا یې نوم سوے پتنګ کا
حسن چې هر چا وته جلوه په جدا رنګ کا
بې له دې څه نه دی یو صفت دے د ژوندون

چیغې دی فریاد د سوځېدلو او بېلتون دے
وستایه د دې لاړې اغلے خو مجنون دے
وګوره د سترګو او ښایست څه یو تړون دے
دا په سراپا کښې چې د ښکلیو زړه راښکون دے
دا شوخی او ناز و نزاکت دے د ژوندون

دا راز د تکوین دے اتومات په تل خوځېږی
ټول مخلوق رِوان ښکاری او تاسې هم بهېږی
نشته د چا توان په اراده چې ودرېږی
مخ کښې چې د مړیو ښکلا نه وی څه پوهېږی
دا ځکه چې شوے نرې هجرت دے د ژوندون

دا جهان که وځېړې یو عکس د بشر دے
مینه ده، ښکلا ده، زړه او ژبه ده بصر دے
طرحه ده، مقیاس دے، د عمل نفع او ضرر دے
عقل دے که پوهه ده، که علم که هنر دے
ښکاری مختلف خو یو صورت دے د ژوندون

ژوند دے راڅپاند په ګمنامۍ او په شهرت کښې

حس تري ثابتيږي په رغبت که په نفرت کښې

وي "چشتي" هغه چي وي په کم کښې په وفرت کښې

ژوند "حمزه" واحد دے چي ظاهر دے په کثرت کښې

يو دے اکي يو دے که کثرت دے د ژوندون

۱۵، ۵، ۱۹۸۶

---

(۱) د ترسيمي تابلو شرح :-
علامه محمد اقبال په جاويد نامه کښې ليکي چي کله زه خپل مرشد مولانا رومؒ (۲) په روحاني سفر افلاکو ته بوتلم د خلورم اسمان نه پورته يو ځای وو چي هغلته د پر سوز او ګداز محسوس کيده ماله خپل مرشد ښخه وپوښتل چي دلته دا سوز او ګداز د څه شي دے. هغوی وفرمايل کله چي ادم (۴) د جنت څخه د زمکي په لور تبعيد شو نو هغه د ندامت فريادونه يې دلته په ذراتو کښې ضبط شوی دی او دا د مقدس سوار واحو مسير ځای دے که د بايزيد، شبلي او داسي نور هغه وخت يو اذان واوريده شو ماويل دا اذان چيري دے. دوی وفرمايل څه چي څو دوه رکعته مونځ خو به په جمع ورسره ادا کړو. کله چي ورغلو دوه کسان په مانځه ولاړ وو. مولانا رام صوفي کړل چي د غه افغاني امام او سعيد حليم پاچا مقتدی دی او ختيز تر دوی بهتر ونه زيږول بيا مونږ هم اقتدا يې وکړه.

١٣٦٥،٢،٢٩

## ٣٦

په زړه کښې مينه کوربنه ګورمه
دا خپله هيله مسلمنه ګورمه
خواره خواري مې راستنه ګورمه
نن هغه بڼکلې ډېرخفه ګورمه
زړګيه ! نن دې حوصله ګورمه

په دغه لاره کړېدلي رندان
ستا په کوڅو کښې ځوريدلي رندان
په شوګيرو دي ژړېدلي رندان
کور ته په تلو دي تېرېدلي رندان
زه د ساقي په مخ ډيوه ګورمه

چا راته وې منګې يې بر ورې دے
زړه يې له مانه مازيګر ورې دے
سېلاب د مينې نن ګودر ورې دے
مخ يې د نمر زما نظر ورې دے
اوس يوه شوخه پلوشه ګورمه

د ژوند له پيله تر دې د م نخښې دی
په هره خواېي د م په دم نخښې دی
سرِ مابنام تر صبحه د م نخښې دی
داخو همه يې د قد م نخښې دی
چې يې په هره مرحله ګورمه

ډېر په تيارو کښې ګرځېدلے يمه
څو وارې جګ او کوز پېر تلے يمه
له جفاګانو د رد بد لے يمه
چې د کثرت اثر ځپلے يمه
عمر مې تېر شو بد رکه ګورمه

د دوستۍ داسې سلسله هم راشي
د حسن او مینې قافله هم راشي
په محبت کښې فیصله هم راشي
په عشق کښې داسې مرحله هم راشي
ما هغه ګورې زه هغه ګورمه

که مې خپل مخ ته روبرو کاندې
شروع په رمز او اشارو کاندې
بانه یې کار د خنجرو کاندې
چې مې مجبور په شوګیرو کاندې
بس خو په شپو کښې هغه شپه ګورمه

که وې پېرے بې ګوېږني ورځم
ورځم له دې نړۍ غمژنې ورځم
«چشتي» ورځم مخ په ترتښې ورځم
«حمزه» محفل ته بې بلنې ورځم
نن د بنګلا د سیند څپه ګورمه

۳۷

منګول مې ايښې ده په دغه لو، اوربدې لمنې
زه به څه وايمه د هغه شان درنې لمنې
چې د مُسکا په سخاوت يې غوړيدې لمنې
په حادثو کښې کچه نه شوې پښتنې لمنې
ګلکې به نغاړو د غيرت دې دا پښې لمنې

د پت په زېرمه به له مانه سمبدل لاسونه
د بل په مرسته کښې زما تل خوځېدل لاسونه
د بلا مخ ته به مې ډال و د ريدل لاسونه
ګوره قسمت ته چې مې څومره لنډ يدل لاسونه
هومره د ښکليو راښيوو ته اوږد يدې لمنې

ستا د ښایست په تماشو کښې د رېدل هرخوا
سنبل، نرګس او هم شبو به رېپېدل هرخوا
بلبل او زرک او عندلیب به کړېدل هرخوا
په پسرلی کښې ګرېوانونه شوکېدل هرخوا
څه تعجب که په دې وخت کښې څیرېدې لمنې

لا به د ستوڼو زغم کومه څکه وار مې نه دے
چې تاو د مینې ترې جوت نه شي کهسار مې نه دے
زه خیرن لاس کله نیوے شمه پکار مې نه دے
سحر خبر په کرامت د انتظار مې نه دے
چې دی د شمار څنې بهر زما د شپې لمنې

ماله اوله پېژند لے ستا د در لورے
د محبت له نامه نښته د ے زبر تورے
هم مې رهبر کړ خپل مزله ته دغه برستورے
ماخو دا وې چې به وی یو زمایه سر سیورے
چې ورته ګېر شوم په هر سر یې وې پرتې لمنې

چا چې له ځایه سپېځلتوب ته سپک نظر وکړو
یا یې مېړو او مړنتوب ته سپک نظر وکړو
هم یې همت او زلمیتوب ته سپک نظر وکړو
چې یې جوهرد سړیتوب ته سپک نظر وکړو
کله په درکښې د باد ار یې شوې درنې لمنې

سترګې روښانه سمندر(۱) ته کړی د زلرګو(۲) شرر
پتنګ د مینې اسان الوزی د درګو په سر
د ګربتانو الوت کړے نه شی د چرګو وزر
"حمزه" د سترګو سره لاړ لو د سترګو نظر
څو چې دیدن ته د مسکا یې غوړېدې لمنې

۲۱ ، ۵ ، ۱۹۸۶

---

(۱) هغه اور زېږوونکی حیوان ته وایی چې د اور په لمبو کښې ژوند کوی۔

(۲) یو قسم د لرګیو بوټے دے چې سوځول کېږی او خورا تېز اور یې دے۔

۳۸

د عشق پرتو مې د غه سلسلې ته ډیوې راوړې
د مینې برېښناستا لارې کوڅې ته ډیوې راوړې
د هیلو بهیر دلته قافلې ته ډیوې راوړې
دردونو مې ستا در ته، که کعبې ته ډیوې راوړې
دې ښکلیو مېلمنو مې جوړ حجرې ته ډیوې راوړې

د یار د مینې جوش ډې زړه مې څکه تل ویلېږي
له ستر ګو څنې زړه د ے چې شو اوښکې اوڅڅېږي
د دې لارې سپېځلې به زما په درد پوهېږي
ښکالو د ارمانونو مې په زړه کښې معلومېږي
دا چا مې دې ویجاړې هدیرې ته ډیوې راوړې

په ښه صورت ښوونه شي سمون تل د بدانو
اخر به تړون وشي د نېستمنو او ودانو
دا حدس را ښکاره کړو ماته خاصونکته دانو
شايد چې روغه وشوه د واعظ او د رندانو
ساقي چې داسې د برې ميکدې ته ديوې راوړي

دې نمر، سپوږمۍ او ستورو خونن ماته سلاوکړه
د سوی زړه فرياد مې وايه چاته دعاوکړه
دعا مې په محراب، مسجد، کعبې کښې جلاوکړه
حسرت د هيلو اوښکو مې بې واره رنا وکړه
دې ستاخوارۀ نظر جوړې جرګې ته ديوې راوړي

د غم له زوره نيغ بدن مې چيت غونډې ښکاره شو
بې واکه مې ټول تن له غمه وريت غونډې ښکاره شو
سامان د غم مې هم په جهان تيت غونډې ښکاره شو
ن ستاچې نظر ځلند ملتفت غونډې ښکاره شو
همدې مې ټپر بدلې حوصلې ته ديوې راوړي

زه سرچې وم په ټيټو، هسکو، د ښتو او راغونو
جانانه ! تله تاپسې په ښارو او باغونو
زما به تماشه کړه تل کوترو او زاغونو
پيدا د ستوريو ژبې کړې زما د زړه داغونو
نمرمخيه ! ستا غمونو مې چې شپې ته ډيوې راوړې

زما د سوي زړه به چيرته نه وي فريادونه
د هجر شوګيرې دي، طوفانونه دي بادونه
له ما سوز او ګداز دے، له رقيبه فسادونه
راځې په خپله ښکليه، که راغلي دي يادونه
ناڅاپه غوندې چا مې شوګيرې ته ډيوې راوړې

د عشق ډګر ته دواړه خوا سلا وو راياديږي
په مينه کښې چې تل سره پخلا وو راياديږي
د هيلو په دنيا کښې خواپه خوا وو راياديږي
شايد چې کله مونږ سره اشنا وو راياديږي
مُسکا مې دې هيرجنې حافظې ته ډيوې راوړې

«چشتی !» د یار جلوه ده زما عشقه نږدبان شه
د دوو کونو هستی ده، د واړه کونه پرې ودان شه
د زړه خاطر به بویم د دې لارې نکته دان شه
قربان له هغو سترګو زما عمر جاودان شه
«حمزه !» چې یې زما د زړه تیرې ته یوې راوړې

۲ ,٦ ,۱۹۸٦

٣٩

نن مې قلم واخیست څه بیان لیکم

ستا په مخ یې لیکم چې اسان لیکم

ګران وی په ما ډیر چې غزل ګران لیکم

هرکله داستان چې د افغان لیکم

پوره شه پت او ننګ د مسلمان لیکم

زما دماغ چمن وی د یو رنګ ګلو

څو ګلان پکښې کړه د بل رنګ ګلو

جوړه دې غنچه شی د څو رنګ ګلو

ژوند مې ګلدسته شوه د رنګ رنګ ګلو

دا ده افسانه چې یې عنوان لیکم

غرېږو مې له تا، چېغه د تا، وخ د تا
شاپه شا د ستا يم ، مخامخ د تا
تا پسې لغړېږم يارره سخ د تا
زلفې دي که ستايم اشنامخ د تا
مدحه د کافر که مسلمان ليکم

تن کښې مې ججرې دي بنا کېږي هم
څومره چې جوړېږي وېرانېږي هم
څومره چې رنګېږي ودانېږي هم
څوچې حُبل کېږي نوحوانېږي هم
کم به وي تعريف چې دي ارمان ليکم

ژوند په دې نړۍ کښې دے بستر د مرګ
غم، خندا به تول اخلي دفتر د مرګ
واړه به حصار شي په چنبر د مرګ
وې په خپله ليک دې کړه محضر د مرګ
ما ووې اشنا چې په چشمان ليکم

جوړ یې کړم چې جوړه کړم د ځان لیکه
زه یمه په کون او په مکان لیکه
راغلمه زرغون بیا د خزان لیکه
پاتې لکه ګرد شی د اسمان لیکه
چېرته چې اسرار د لامکان لیکم

واوره "چشتي" خدایږو ستړه به یم
زه به نورخه نه یم انګېزه به یم
ځکه مزه ناک یم په مزه به یم
څو چې «حمزه» پایمه «حمزه» به یم
پیر شومه بې شک خو غزل خوان لیکم

٦، ٦، ١٩٨٦

## ۴۰

۲۵ / ٦ / ۱۹۸٦

حیران یمه ستا زړه ته جهانونه پکښې کوم دی
د هیلو تخم لوښې بارانونه پکښې کوم دی
دا ژوند دے ؟ حوادث او سېلابونه پکښې کوم دی
دریاب که وایی زړه ته طوفانونه پکښې کوم دی
د رزېږی دا منم خو ارمانونه پکښې کوم دی

داس پرځای سوارلی دې په قاطرده دا به څه شی
خیالونو ته هوس که دې شاطرده دا به څه شی
په لاس که دې نن خوځنده ساطر ده دا به څه شی
صحرا که دې پراخه د خاطر ده دا به څه شی
غولی دی، بوربکی دی، کاروانونه پکښې کوم دی

د بل د پاره زړه کښې نه عزت، نه پېرزوينه
په چا دې لورينه، نه راحت، نه پېرزوينه
دا ولې دې په زړه کښې نه شفقت، نه پېرزوينه
په زړه کښې دې نه غمشته، نه الفت، نه پېرزوينه
دا کور خو لکه ګور دے، سامانونه پکښې کوم دی

څېره يې د انسان وی بيا يې بويه ستمګر دے
ادعا يې د تقوا وی، خو بد خويه ستمګر دے
هر څيز را مخامخ د چاله رويه ستمګر دے
پسرلے د دے چمن څه خنده رويه ستمګر دے
بې شوکې پاتې شوی ګرېوانونه پکښې کوم دی

د حق په لار له خپل ځای راوتليو فضا ګوره
ما وې د غم ځبليو د زړګونه دوعا ګوره
حيران يمه د سره سېلاب وهليو جزا ګوره
د بنکليو مينه چا وې چې بنه نه ده خودا ګوره
سپېڅلی بې علته د امانونه پکښې کوم دی

د خپلو په خپلوۍ کښې د پردوخبرې ښکارې
په نوم د مهمانۍ د جېل خانوخبرې ښکارې
په لر او بر نړۍ کښې د برچوخبرې ښکارې
د ژوند دا افسانه د لېونوخبرې ښکارې
مفهوم دے پکښې چېرته، عنوانونه پکښې کوم دی

تېرے او تجاوز د سرو لښکرو او فوځونو
افغان قوم تباه کړی په توپونو او بمونو
ټينګ کړی اعتقاد د ظالمانو له ظلمونو
لا نور به هم قوی شی د حالاتو په پلکونو
زلمی خو شته خو زړونه، سندانونه پکښې کوم دی

«چشتی» شته منبرونه کاشکې زړونه راژوندی کا
وے داسې تکبيرونه چې خو زړونه راژوندی کا
سرور وے بيا سرونه چې خو زړونه راژوندی کا
«حمزه» شته مسجدونه خو چې زړونه راژوندی کا
اوس هغه تکبيرونه، اذانونه پکښې کوم دی

۳، ۷، ۱۹۸۶

۴۱

ادب د ے د غه د گلشن د اشارو زده کړه
بلبل ته ولې شوه په برخه د نغمو زده کړه
ماليار به ومه که مې زده وے د غنچو زده کړه
بيا به وه ما ته اجنبي که مې هرڅو زده کړه
ژبه که ما د هغه ښکلې د لبمو زده کړه

که مې ته خاص نه کړې د ځان ياره د تا خوشومه
ويارم په دې په حقه لاره برملا خوشومه
د سمې لارې ښکارندوی روښه رښا خوشومه
که شوم په خپله نترې محروم حکمت اشنا خوشومه
غوته خور نه شوم خو ترې لرې مې لامبو زده کړه

ماته ثابته نور جهان ته معمّا ده اشنا
هغه برېښنا چې عشق ړانيسي هم له تا ده اشنا
د زړه خبره له بيان ځني سوا ده اشنا
د اسې غوغا چې له الفاظو معرّا ده اشنا
د تا د زلفو لېونی له زولنو زده کړه

د عشق تر لومې شمه ځار چې پکښې ګير يمه زه
د د غې لارې لېونی ضعيف ، زهير يمه زه
حسن له هر شی ځنې غواړمه فقير يمه زه
طنز يې له سترګو نه څخېږی ګل ته ځير يمه زه
د اسې خندا يې د شبنم له الوتو زده کړه

شمعه خندا نه ځان قربان کړی آفرين پرې نه کا
لمر ګلی مخ اړوی لمر ته تور د دين پرې نه کا
بورا په ګل کې پښه کېږدی خو نفرين پرې نه کا
د راز خبرې کړی په جهر څوک يقين پرې نه کا
کار په افشا کښې دا خفا له لېونو زده کړه

دا يې رڼا ده که مُسکا ده روبرو غوندې
ښايست پرې ناڅي هميشه د ښنو درو غوندې
په پرېشانۍ کښې زړونه ورې زلفو خورو غوندې
چې په حيا کښې هم کاته کړې د زمرو غوندې
ما له دې ستر ګو مسلمانو پښتنو زده کړه

دې خواته ګوره! چې له تاوه دې غوغا جوړه شي
له هر بانړه به دې ويشتليو ته بلا جوړه شي
اخر به دا جر ګه زه وينه په ما جوړه شي
لاره د ژوند به هم د تا په مدعا جوړه شي.
تګ په غورځنګ لکه د سيند هسې د تلو زده کړه

بيا چې تاريخ کښې د ادب په قلمو وي حساب
«چشتي» به هم په ملا تړليو څو تنو وي حساب
په معنوي بڼ کښې ښکلا چې د شعرو وي حساب
«حمزه» پښتو به د تا هله په پښتو وي حساب
که په دې وخت کښې دې رلموونه پښتو زده کړه

۴۲

عزّوشان د تا دے، ماته شان مه راکوه
ځان که لرم خیر دے، غم دځان مه راکوه
ستا در کښې دې پروت یم، بل مکان مه راکوه
ما درته ویل به چې چشمان مه راکوه
راچې دې کړې شپې خودهجران مه راکوه

دا ملګری واخله د مزله د لار مې نه دی
څکه پردی ښکاری د اشنا د ښار مې نه دی
دا وسایل ځه کړم د ختو د دار مې نه دی
واخله، واخله، واپې خله واپس پکار مې نه دی
ماته دوه جهانه په احسان مه راکوه

داخو مې فطرت دے چې له پاڼ کوزېده خوښ شوم
کله بیا له پروتې په خپل واک جګېده خوښ شوم
کله داسې راشي په مرام رسېده خوښ شوم
زه لکه مېږ ے که په لوېده، هسکېده خوښ شوم
خیر دے دېدبه د سلیمان مه راکوه

زه چې هرڅه لیکم داشنا قصه به لیکم
بل څوک نه لرمه د بل چا قصه به لیکم
هرڅه چې زه لیکمه د تا قصه به لیکم
ته خو بنه پوهېږې چې دچاقصه به لیکم
هرڅه هرڅه وایه خو عنوان مه راکوه

رادې کړه پیاله بیا دې تر خولې ویوړوله
زخم هم له تا وو مالګه تا پرې دوړوله
تامین کړم زه، اول دې مینه راکوله
تاچې راکوله مینه خود مې قبلوله
نه مې شو ویلے چې ګریوان مه راکوه

وده راله راکړه لویه خدایه په بېلتون کښې
پروت بنه یم یارانو زړه د ښکلیو په روغتون کښې
خیر کــه ربړې ګالمه په لاره د سمون کښې
راکړه راله راکړه جمعیت په زړه چاودون کښې
فکـر لکه بوی هسې پرېشان مــه راکوه

بل ته په خوږ.من نظر کتلے شم چې څه وی
نورو کښې عیبونه هم لیدلے شم چې څه وی
غم کښې د جهان خوکړېدلے شم چې څه وی
نور همه غمونه زغملے شم چې څه وی
بس خو یو غـمونه د افغان مـه راکوه

چا، چېرته زما دا د هستئ دانه کړه بنځه
زما قماش چې دے چا اوبده د چاله نخه
نه یمه خبر له خپل ګردوالی یا له رخه
ما ته اعتبار د هـریو څیز د تا له مـخـه
پرېږده سـوګندونه په قـرآن مه راکوه

هر چا ته په دغه لو هستی کښې خپله برخه
گل په گلستان کښې، په بېديا کښې اوسی ترخه
هیڅوک به وانه وړی د قسمت له لويه ورخه
ښه يم د دنيا په باغ چې ژاړم لکه پرخه
مخ راته سحر غوندې خندان مه راکوه

ذهن او زړه ښه غواړم له بدويې را تس کړه
څومره چې بدلون رازده کوې هومره مې وس کړه
ورپ له ناکسانو کړمه ته مې خدايه کس کړه
لاخو مې تر مخې هريو څيز د هستۍ خس کړه
لاخو اسوېلی لکه طوفان مه راکوه

نه چې له تا ښه غواړمه خدايه ته يې ښه کړه
تل که اراده د څه کومه ته يې څه کړه
خاورو ځنې هم مې زرغونه بل ته وابنه کړه
لا مې په خپل فکر کار ته پرېږده، لا يې ته کړه
پرېږده ترقۍ ته مې نقصان مه راکوه

اوږد سفر به بويمه خپل ځان لره خپل خيرته
زړه يم مسلمان زړه مې ورتلای نه شي بل ديرته
لاړه لټومه څو جهانه کښې خپل سيرته
ښه يمه بې سره نه چې سر مې ټيټ شي غيرته
واخله دا دې سر هم يې بې سامان مه راکوه

وربه خپل څادر زړه د شاهانو په شال نه کړم
هيڅ خو بروسه زړه په رستم او په زال نه کړم
سر به اوچت ورمه کوره ټيټ به خصال نه کړم
خوله به زه د زړه د صدف ورانه په سوال نه کړم
داسې ماته څاڅکې د نيسان مه راکوه

شعر مې جرس دے چې راويښې پرګنې کړم
حسن او ښکلا ته به راباړ زه قافلې کړم
ژوند ته به رواني او څپاندې سلسلې کړم
ولې حيرانيږې اوس چې سوال د آئينې کړم
ما به درته نه وې چې چشمان مه راکوه

ژوند د دې جهان کښې زه اخښلے نمک بنه یم
خلاص چې مې زړګے د ے له وسواس اوله شک بنه یم
تږیو ته "چشتی" وایه کیلاس او که جک بنه یم
پوهه زه "حمزه" په حقیقت د محک بنه یم
ویره ترهه ماته د شیطان مه راکوه

۱۶، ۷، ۱۹۸۶

۴۳

ته په تقدیر کښې خپل مضمون وګوره
"چنان" چې غواړې، راشه "چون" وګوره
ستا له جهان سره ترون وګوره
درنه یې پټ کړ خپل درون وګوره
څه دا فریب خود بیرون وګوره

پړاو د تا دے له پړاوه وځې
چلاو د تا دے له چلاوه وځې
اور، اوبه ګډ کړې بیا له تاوه وځې
چې د اضدادو له کړاوه وځې
د مرګ په ستړګو دې ژوندون وګوره

عشق بې د سر او مال له د و نه نه وی
او به په سين کښې بې له رو نه نه وی
هر څيز بزدل ته بې له بو نه نه وی
چې تصور يې بې د يـو نه نه وی
عقل و خرد خو د مجنون وګوره

راشه د ښمن ته په پاڅون شه کنه
د ښمن کړه غرق ورته جيحون شه کنه
د بل له دامه په وتون شه کنه
ته دې خپل ځان ته خوراستون شه کنه
وخت به هم بيرته شی راستون وګوره

حيا به ماته ودريده له مخه
ماضی مې ټوله تيريده له مخه
نيستی مې ځکه ځوريده له مخه
سبا به پورته کړی پرده له مخه
د نن په سترګو دې پرون وګوره

ځوان یې خوبوهه په ځوانۍ چې شي ته
بیا کله پوه په ودانۍ چې شي ته
د قام نه ځار، پوه په خانۍ چې شي ته
پوی په آفت د ځانځانۍ چې شي ته
حال د پښتو او د پښتون وګوره

لکه په ورو کښې چې پرېښنا وی پېته
په د رنو غرونو کښې طلا وی پېته
د قام په غم کښې هم سلا وی پېته
په پرېشانۍ کښې هم ښکلا وی پېته
ته خو په ګل کښې زړه راښکون وګوره

وی له تعلیم سره بې پت څه عجب!!
انسان وژل یې معرفت څه عجب!!
له ټیټو ټیټ یې وی رفعت څه عجب!!
د پلار او زوی مخالفت څه عجب!!
لږ ارسطو او افلاطون وګوره

ځوک وی ترخه ځوک په مزه خو ولې
تبه توده وی هم لـهزه خـو ولې
کـړ مخمس «چشتی» تازه خـو ولې
ساده انشا وی د «حمزه» خو ولې
بیا دوباره یې هر مضمون وګوره

۱۹۸۶/۸/۸

۴۴

د بدیو په خره سپوریږې خرپرسته
له شیرو سره ګرځي شـــرپرسته
چې په هر وره کښې ولاړېږې ورپرسته
سره دې لاړل څنګه زړېږې شوې زرپرسته
اضطراب دې شو په برخه نمرپرسته

د خبرو غلاوې ته کړې، غلا دې پرېږده
صادق نه شوې د تزویر ردا دې پرېږده
کبرجن شوې د لوړې فضا دې پرېږده
دا د عشق د بلندۍ هوا دې پرېږده
هلته پر د هوا سوځي پر پرسته

زه له بره خبردار شوم عقل راغې
هم له لره خبردار شوم عقل راغې
له خطره خبردار شوم عقل راغې
بيا له سره خبردار شوم عقل راغې
ژر خبر مې وا خله عشقه سرپرسته

ځان ورک نه کړې علم وفن د جهان زده کړه
جهان بينه لږ لږ لبد نه د ځان زده کړه
کان په خپله يې کندنه د کان زده کړه
څېرول د تاريکۍ د ګرېوان زده کړه
خندا راشي ستا په کار سحر پرسته

په اسمان دې سپوږمۍ ګرځي تابان نه ده
په لېمه دې اوښکه ډېره شوه دوان نه ده
د حيرت ګونګه څپه يې بيان نه ده
په خپل ځان دې پېژنوينه د ځان نه ده
لا حيران کړې آئينې هنر پرسته

، حسن او سترګې چې پیوست دې پیدا شوی
د عشق زړونه ناشکست دې پیدا شوی
مینه ناک تل حق پرست دې پیدا شوی
ښکلي ټول نظرپرست دې پیدا شوی
لېمه مه خوره په ژړا بشرپرسته

څوارلسمه راغله غدر یې ونه کړ
«چشتي» زوړ شو دید دبدرېې ونه کړ
داوري د ښکليو صدر یې ونه کړ
د حمزه د اوښکو قدر یې ونه کړ
آب دې زیات شه د نظر ګهرپرسته

۱۳۶۵/۵/۳۱

۴۵

وره ته ولاړ ومه چې ور پرېوت
زه يې لېدمه څکه ژر پرېوت
سمه، غر واړه لروبر پرېوت
تندے مې څه پرېوت چې سر پرېوت
نن زما سر د چا په در پرېوت

ستا د بنايست چې په لېدو شومه زه
له خوشحالۍ په نخښېدو شومه زه
سم په لوېدو او جګېدو شومه زه
لکه سپند په ګډېدو شومه زه
خدايزده په ما د چا نظر پرېوت

له تللو پاتې بې وزر غونډې شوم
وزر مې وو بې بال وپر غونډې شوم
عقل مې بايلود کوړ وکړ غونډې شوم
د اسې ناڅاپه بې خبر غونډې شوم
غوږ کښې ږما د چا خبر پرېوت

ماوې چې ګونډې مې کړې يار په ګوته
ږه يې وليدمه د اغيار په ګوته
خدايه څوک ورمه کړې د خار په ګوته
لکه غبار د انتظار په ګوته
ږما په سترګو کښې سحر پرېوت

ښکلې کاکل دې ول په ول کړو اشنا
مانه نظر دې بر په چل کړو اشنا
اور د حسرت دې په ما بل کړو اشنا
مينې څه نوې ارخ بدل کړو اشنا
ستا نه مې زړه کښې نن خطر پرېوت

ساقي په شرنګ د خزانې شو په خود
چاکړې ملا ته بهانې شو په خود
څوک زنګېده له مزانې شو په خود
څوک په ستنه له ميخانې شو په خود
خو څوک د ننه څوک بهر پرېوت

شب ګل د باغ شو مسکے، لاړو اشنا
تيرو کښې راغ شو مسکے، لاړو اشنا
بل شب چراغ شو مسکے لاړو اشنا
«حمزه» هر داغ شو مسکے لاړو اشنا
ستورو بربښنا وکړه چې نمر پرېوت

۱۳۶۵/۶/۲

۴٦

ښکارندوی د خپل ښایست شو ، دا سودا څه رندانه ده
هم يې ښکلې خپله جوړ کړل، هم نګاه عاشقانه ده
څه چې غواړې هغه کېږی، دا څه لویه کارخانه ده
د ساقي دا التفات چې، بېرته شوې يې ميخانه ده
د فطرت په خوله يې څکه، دا سې څوانه ترانه ده

کاینات يو ننداریتون دے، هم مرموزه شته لبدکه[۱]
هره وته پوره ښکاريږی، ذره بين کښې په ميندکه[۲]
هوښیاری دلته چلیږی، رابيداره شه ویدکه[۳]
لېږدی هوش ته خبر ورکړه، چې ځان بچ کړې له تيندکه
ګوره دلته په هر ګام کښې، صراحی او پيمانه ده

د ښایست پستو ځپو مې، د حیرت خمار راویښ کړ
زړه زما ښکلې دلدار بیا، د الفت په تار راویښ کړ
د گلشن جهان که گورې، د بلبل چغار راویښ کړ
د دیوې وروستۍ سلگۍ مې، د ښو ځمبار راویښ کړ
زما ستړیه انتظاره ! اوس دې جوړه بهانه ده

د اسمان په قافلو کښې، څه روښانې اوښکې راغلې
په ماضي او حال مې خدای بو، زما روانې اوښکې راغلې
مستقبل ته په حیرت شوم، پرېشانې اوښکې راغلې
د زړو ستړگو لېدل وو، ځکه ځوانې اوښکې راغلې
معلومېږي چې د مینې، لا نیمگړې افسانه ده

ها ناغه د سترگو تورو، چې پخوا به وه دا نه ده
اوس د زړونو وړل اسان شول، هره چاره رندانه ده
رقیب هم په خوله خندا کا، زړه په پټه کینه دانه ده
هغه لومه ستا د زلفو، چې پخوا به وه دا نه ده
هغه داغ د زړه مارغه ته، اول خال وو اوس دانه ده

که په سترګو خپل بانه هم کړي راچخ نه بنکته کيږي
د ښمنان که طعنې راکړي، وکړي سخ نه بنکته کيږي
سر مې هسې د ے جوړ شوے، لوړ رخ[۴] نه بنکته کيږي
اوس لېمه زموښ د دواړو چې شو مخ نه بنکته کيږي
غيرت د ے؟ که تکميل ته رسېدلې يارانه ده

په معنیٰ کښې د بيان خو، د سارق او سالک فرق د ے
په ميدان کښې د عمل هم، د شهيد او هالک فرق د ے
د ويلو او ليکلو، د وينا او د ليک فرق د ے
په تقدير او په تدبير کښې د خادم او مالک فرق د ے
سلسله د ګورو زلفو مزينه په شانه ده

آيتونه مقدس دی، خو يو يې را نزول کړ
د مولا حضور خو عام وی، خو چا، چا زړه ته وصول کړ
تل رضا رحمت يې شته د ے، څېنو څېنو راحصول کړ
زما زړه هم هغه زړه د ے، خو اشنا چې تا قبول کړ
هم هغه چا وده کنجکه، اوس چې ګورې دُردانه ده

چا بخمه لمي کړي په ځان کښې، چا کرباس دے وراغوستے
څوک يقين په زړه کښې وياړی، چا وسواس دے وراغوستے
چا ته لوی خرطوم په سر کښې هم خناس دے وراغوستے
حقيقت ته د وجود يې، يو لباس دے وراغوستے
دا دنيا چې درته ښکاري، د چا خپله افسانه ده

د بېديا محيط که هر څومره، سمسور وی خو صحرا وی
که ډبرې، غروټه ډبرې، په هر لور وی خو صحرا وی
په فضا کښې که د زاڼيو شور ماشور وی خو صحرا وی
زړه او يار چې سره بېل يو، که مې کور وی خو صحرا وی
زړه او يار چې سره کښېنو، که صحرا وی خو خانه ده

ماله ځانه سره ووېې، داسې ځای نشته چې نه يې
په کوټنو کښې چې ستا دی، په همه ؤ کښې به ته يې
هرڅه ستا په وس پوره دی، او هر ځېز وايې چې ته يې
که ته هغه شې چې ته يې، ته هغه نه شې چې نه يې
نه وختونه غلچکی دی، نه شوکماره زمانه ده

که بد خونده خواږه ورکړي، نه په هر ظرف جميل کښې
چې مزه يې ښکاره نه شي، په ډېر والي يا قليل کښې
د منطق لار ده جوته، او ثابته په دليل کښې
ستا غرض پرده کول وو، له مينو په محفل کښې
مرور شولې زما نه، څنګه ښکلې بهانه ده

د ځوانۍ هوس که اوس کړي، „چشتي" څنګه به زلمی شي
د ژوندون بهير په مخ ځي، شاته يېړته کله تلې شي
په خزان د عمر پروت يې، په جهان که پسرلی شي
نه زغملې دې فراق شي، شمعه رويه! نه در تلی شي
ستا „حمزه" څنګه „حمزه" دی؟ بې وزرو پروانه ده

۱۳۶۵/۶/۶

---

(۱) هغې لېدنې ته وايي چې فاعل يې غير معلوم او مشخص وي. او دا عمل په کاينات کښې جاري دی.

(۲) د الو، زردالو، شفتالو او داسې نورو ميوو زړيو ته وايي چې په لابېرې کښې تر ذره بين لاندې په هر زړي کښې د هغې ونې شکل او شاخونه څرګند بڼ ی.

(۳) په اشاره د ندا هغه ګران نوي زلمي ته ويل کېږي چې په عين ندا کښې د تشفيق څرګند ونه هم ترې شوې وي.

(۴) هغې تېرې يا جګې حصې لرلوته وايي چې اجناسو کښې استعمالېږي خصوصاً لرګو کښې چې هغه د عامل د عمل مانع ګرځي.

۴۷

علامې دي، راجوت به شو د دهر په څپو کښې
کوبتانو به کړه ځاله زموږ په هسکو سردرو کښې
زما مجنون کله کله پرې د جهان په لېونو کښې
د ښکلا سرخي لمبه شوه د هستي په اننګو کښې
ضمير ښکاري بوږنېدلے د حالاتو په ککو کښې

کله کله ډېرې واورې هم ورېږي په رغو کښې
کامې بوټي هم نه ښکاري خود ننه وي په غرو کښې
د افغان اور به مړ نه شي سرې سکروټې په نغرو کښې
جرس وايي اى ورک شويو! په روانو قافلو کښې
زما غږ خوشنته که پلونه دي پټ شوي په ګردو کښې

د دښمن ظلم که هرڅو راښکاره شي په توپو کښې
د غیرت وینه څپانده په څخو او په زلمو کښې
زما اوبه د میني اور د ے تل چلیږي په رګو کښې
هیڅ تحفه راڅخه نشته د الفت په مرحلو کښې
بس روان یمه چي فرق مي پیدا نه شي په پښتو کښې

د مسکو کبر او غرور د ے دلته راشه که یي لولي
آتشي بمونه اوري زمون دپاسه کـــه یي لـــولي
روس وحشت یول را څرګند کړ ورته راشه کي یي لولي
د ارمان مازیګر ے د ے راشه راشه ! ! که یي لولي
یوه تته افسانه مي پاتي شوي په لیمو کښې

کفایت وي په سمون کښې د غه کون ویرکتاب د ے
چي د بل خرابي غواړي هغه خپله هم خراب د ے
که د بل چاښه په ما شي زما خوښ د ځان کباب د ے
ستاد مخ د نمر نه کرے زما میني اکتساب د ے
هسي زړه نه فنا کیږم لکه سیوري په تلو تلو کښې

ژ امې تللې قطارونه په هواکښې کړنګېږ لې
میندې، نجونه به په مینه په کوروکښې خندېدلې
لورینې به یو بل ته ما په ټولو کښې لېدلې
څنګه وخت وو چې به دواړه یو په بل کښې ورکېدلې
شوګیرې به وې په شپو کښې، کله شپې په شوګیروکښې

له بلا سره سروزم، څوبلا نه وي ستومانه
که هر څومره ستونځې راغلې، زه ګیله وکړم له چانه
بل څوک نه لرمه خدای بو، هره پېښه مې له ځانه
ته زما نه شرمګیر یې، زه شرمېږمه د تا نه
ښکاره راز د مینې پټ وي، یو له بل په پټېدو کښې

سر مې ټیټ مه شوه وچاته، ځکه ټیټ کتلې نه شم
په پردو لوښتو د ستارخیل یاره هیڅ پخلې نه شم
د همزولو پېغورونه ژوند کښې هیڅ منلې نه شم
استقبال ته به دې راشي، که نه هیڅ راتللې نه شم
خو اشنا زما جرګه ده، لا په اوښکو پېښتنو کښې

د شهید په وینه ویاړم یاقوتي یې ولې راوړه
د منصور دار ته چې خیژم دا تندي یې ولې راوړه
د زمان استازی راغلل دا پرتي[1] یې ولې راوړه
ته چې راغلې او ښکې راغلې، دا سرخي یې ولې راوړه
ولې رنګ د ننواتې راپیدا شو په جرګو کښې

دا خوبان چې فتنه تل کړي، په وسله د تورو زلفو
بیا جرګه له ورایه راغله، مرکه د تورو زلفو
که قید ما وو تل منلی، په حلقه د تورو زلفو
شفاعت ته وه راغلې، جوړ جرګه د تورو زلفو
ګنې خوب او سکون چرته ؟ په مجنون او زولنو کښې

ننملګرو ماته ووې چې بلد په رسم و راه دی
چا چې کبر او تذلل کړ، هغه ګوره پو پناه دی
اعتدال، میانه روی تل، ونښکانو ته دلخواه دی
دا رنګین زلمی خیالونه چې استازي د ګناه دی
یو څه ښکلې کیفیت مې راپیدا کړی په توبو کښې

«چشتي» اوس په ترور ميو کښې د اليدنه ښنګ وکړه
چي کتل چاته سم نه شي، تاکتنه ښنګ وکړه
د رقيب په يو کاته دې، بيا رڼته ښنګ وکړه
نن نشې په نوی رنګ کښې غزونه ښنګه وکړه
«حمزه!» سترګي د ساقي دې، جوړلېدلي په کاسو کښې

۱۳۶۵/۶/۲۱

---

(۱) پرتي : جديت ، جهد .

۴۸

ولوېدم، لوېدلے د شیرین جانان له پامه
ویر کومه، پروت یم، زړه لوېدلے یم له بامه
لومه ئې برته خلاصه کړه، زما مینه وه خامه
لا شوم خوبولے، د سبا بادِ خــــرامه
دا دې د کوم رنګه؟ خبر راوړله ګلفامه

زړه که مې باچا وی، دا به هم وزیر لرینه
عشق غوندې شهباز مې په هستئ امیر لرینه
تن مې په خپل ځان کښې څه عالی دبیر لرینه
ذوق د مینوشئ مې پاکیزه ضمیر لرینه
نه د ے اموخته چې به کړی کوټ له جوته جامه

ویښم زمانه تښتېدلې ماته ورېنه نه ده
دغه دنیاګۍ په زړه کښې ماته سپېنه نه ده
زړه که شم قربان تریاره دامې مړېنه نه ده
خدایږه چې پېړزو مې سرکوزی په مینه نه ده
وځه له چشمانو مې د ښکلیو احترامه

ای زړګیه ! تا ته چې راځي ها به د تا کړم
لعل دے، که الماس، که جواهر ټول به وړیا کړم
څه چې تا ته نه راځي، هغو ته به زړه شا کړم
یو یم په څه شان به یو تسکین درته پیدا کړم
ته شه یکزبان، د ارمانونو ازدحامه

وړیو ته د آیو خاګینه په مخ کښې مه بړده
ترېیو ته رنګینه آبګینه په مخ کښې مه بړده
باز ته مرغکۍ سپینه سینه په مخ کښې مه بړده
ښکلیو ته د مینې آئینه په مخ کښې مه بړده
سم کاته که غواړې ته له دې سنګد له قامه

زړه کله بې ستا چېرې، یو وخت د چاپه خوله وم
هر قدم چې ما اخېست، اشنا د تا په پله وم
ته مې مدعا وې، ځکه ستا لورته په تله وم
ښکاری چې زړه ستا په طلبګار و کښې ډېر ښه وم
ځکه دې په واړو کښې ډېر بد شومه له پامه

درد کښې مې راګډ چې نه یې، غږ ے د تن نه یې
ته چې خوشبویي نه لوې ځه د ختن نه یې
دا چې ته په تار جامه کښې نه شې ستن نه یې
جذبه، چاپلوسه!! نه د عشق د وطن نه یې
ورک شه د هوس مخبره، لرې شه غلامه

راغلو هره خوا د مشتاقانو پیامونه
هر چا په خپل دود وو استولي پیغامونه
چا لومې ستا یلې او چا ښکل کړلو دامونه
کېږي په کثرت ورته بې واره سلامونه
خدایٔ بې هسې نه کړي چې به تش درومې سلامه

جام د حرص خوړک، په دې نړۍ کښې دچانه شو
ځکه تر حد زيات چې شی طلب هم رړوا نه شو
هيڅ ځای جاه طلبه ! په هستۍ کښې دتا نه شو
ځای دې د خاصانو په لېمو کښې پيدا نه شو
ړېړې دې پېښې د خاص الخاص و کړې عامه

دومره ناز کوه پوه شه چې هاوې د سينو[1]
را مې وړ خپل لوښی خيرن تا ته د نينو[2]
شکر پرې واجب وی چې لری څوک د وينو[3]
بلې چې ړيوې د انتظار کړی د مينو
ځکه مخ ړوڼ دې هميشه کېږی نماښامه

---

(۱) سَيَنْ : تحمل ، زغمل

(۲) نين : هغه د مځکې تار تار لوښو مېنځونکې وسيلې ته وايي چې ډېر تور او کرغېړن ظروف پرې پاکېږی .

(۳) وَيَنْ : وينا . خصوص د نصيحت او ښوونې وينا ته استعمالېږی .
په پښتو کښې د فعل استمراری په توګه داسې استعمالېږی :
سينه : زغم . سين : زغمل .
وينه : وينا . وين : ويناکول .

ما خو «چشتی» بایلود سر و مال په ورکتوب کښې

اوس به څه ژغېږم د یارې په سپېڅلتوب کښې

هر څه چې زه غواړم یاره ستا په مینتوب کښې

عقل مکمل شي په لوړتیا د لېونتوب کښې

خاندي لېوني دي «حمزه» گوره يې له بامه

۱۳۶۵/۶/۲۳

۴۹

تل خندا هم سمه نه ده، ځای د قار چې وی قار وکړه
له خوږ منو سره خوږ شه، که جار جار کوې جار وکړه
د ښمن هر لوری ته ګوره، مخ او شا ته ښه څار وکړه
وار خطا مه شه په تله کښې، ځای د وار چې وی وار وکړه
د منزل کُړپې کړه سمې، لکه سیند هسې لار وکړه

د ژوندون زمان دې وخت دے، ماسپښین او سهار څه وی؟
کار په پته خوله هم کېږی، بیا نارې، د نارو کار څه وی؟
که ته کار ته چمتو اوسې، کار تیار، نا تیار څه وی؟
په رڼا، تیاره کښې ګیره! دا اقرار او انکار څه وی؟
اعتبار خو په عمل دے، ملا دې وتړه کار وکړه

د جانان حضور عزت د ے، د عزت باریکه لار ده
عشقه! وامې خله بر لور ته، د رفعت باریکه لار ده
نه ما ضمیر خو راته وایی، د شفقت باریکه لار ده
اور د ې شپې رونوې هسې، د الفت باریکه لار ده
صوفي! پورته کړه لاسونه، رقص د زلفو په تار وکړه

که ساړه وو که تاوده وو، عمر تېر شو رانه هېر شو
هېڅوک چانه د ے لېد لے، چې په عمر هغه سېر شو
که یې عمر څومره ډېر شي، هغه نه وایي چې ډېر شو
ناممکن یې رانیول دی، منېږ مه وهه چې تېر شو
دا راتلونکے وخت به هم شي، درنه تېر انتظار وکړه

وني ویـني په باغونو کښې، ګل غنچې شي، وروسته بار کا
له ګلبڼ ګل رابوټېږي، راپیدا یې څنګ کښې خار کا
زمکه چوړلي، نوره شپه شي، بیا په خپله هم سهار کا
د فطرت کارخانه پرېږده، چې په خپله خوښه کار کا
ته به شې هغه چې ته یې، په خپل ځان اعتبار وکړه

رزم تود دے، زهونه بشکارشي، نه ده داد باز خبره
روح مې ناڅي، کونډې واوري، «چشتي» ژر د ساز خبره
ما په عشق پې رو بتلے، نن کوه د ناز خبره
چې وه پاتې له منصوره، غبوه د راز خبره
«حمزه» راشه! نن سبايې، د دارينو په دار وکړه

۱۹۸۶/۱۰/۱۰

۵۰

په ګلشن کښې ګل او خار پيدا کوه
ښايسته غاړې ته هار پيدا کوه
که حکمت لرې بيمار پيدا کوه
طاقت ښه دے د ګفتار پيدا کوه
خو جوهر د ښه کردار پيدا کوه

مرګ يې مه بولې که پيغله وارسته مرې
د فطرت ناموس چې شي هغه به نه مرې
د شيطان په دام چې کښيوزې تل هغه مرې
که يوه دې د اميد په هره شپه مرې
نوے ژوند د انتظار پيدا کوه

بنه دځان کړه بدان نېک قوت نه ښه دی
ظلم او زور د نېکوئی صولت نه ښه دی
غر، کمر بیا د شاهین رفعت نه ښه دی
لوړ، ژور لاپېښتنی همت نه ښه دی
د سیند ونو غوندې لاړ پیدا کوه

تل دوکې له وینا چرېه پیدا کېږی
بدامنی له ظلم او حربه پیدا کېږی
لور، طرف له شرق او غربه پیدا کېږی
اوازونه خو له ضربه پیدا کېږی
وخت خو کم نه دے خو کار پیدا کوه

کار هغه دے چې دیار دپاره کار وی
لار هغه ده چې دیار دپاره لار وی
تار هغه دے چې دیار دخپلوی تار وی
یار هغه دے چې دیار دپاره یار وی
یار که غواړې داسی یار پیدا کوه

زړه چې خوږ شي سترګې تل وايي حالونه
عشق زما دے مدعا، نه تزويرونه
د الفت خبرې راوړه مه لعلونه
زه به تا ته په ژړا کوم سوالونه
ته انکار دې په رخسار پيدا کوه

د دنيا معامله ده نن خچنه
خوشحالي راته راوړی د يار کتنه
نوره تهوله نړۍ وينمه غمجنه
وارخطا نه شي د ښکليو په رتنه
په يو وار پسې بل وار پيدا کوه

تل د يار ترخه جفا وي وفا نه وي
په هرچا وي مهربانه په ما نه وي
په زحمت که مې خندېږی رضا نه وي
هميشه د ګلرخانو مسکا نه وي
له خوښانه دی بهار پيدا کوه

„چشتي„خیلو څخه تل ته رضا اوسه
له دوستانو سره تل ته پخلا اوسه
همیش بنه کوه له بدو جلا اوسه
„حمزه„خپل ته لکه ګل په خندا اوسه
د اغیار په لار کښې خار پیدا کوه

۱۰/۹/۱۹۸۴

## ٥١

ستا په لوري ځمه درېد لې نه يم زړه
بېرته د طلب نه ګرځېد لې نه يم زړه
څومره پورته شوی او لوېد لې نه يم زړه
هغه شان غوټۍ يم، غوړېد لې نه يم زړه
بې د تانه چاته رسېد لې نه يم زړه

سوړ دې يارهٔ، سوړ مې طبيعت دی، نور يې تود کړه
سېک د مينې ستا په محبت دی نور يې تود کړه
اوس مې اوربه د مينې ته رغبت دی نور يې تود کړه
تريخ مې جوړ آهن د شخصيت دی نور يې تود کړه
يم که ټکېد لې، غزېد لې نه يم زړه

ژوند مې د تا مينه ده طلب دې د دوستۍ کړم
حسن وي په لوړه ځکه وېره له پستۍ کړم
ستا پر ښکلا پايم ګله! چيغه له مستۍ کړم
بې د تا نه هرڅه ته نسبت چې د نيستۍ کړم
وايم چې لا «هرڅه» رسېدلې نه يم زه

حسن ستا په مينه کښې پروانه دے رازده کړے
هسک نظر د عشق عالي شهبانه دے رازده کړے
نېغ کتو بې خدايه و ترک و تاڼ دے رازده کړے
ما ته هغو سترګو د ژوند رازه دے رازده کړے
سترګو نه د مرګ چې بوګنېدلې نه يم زه

مينه ده په هر ميدان برېږي او پېره نه شوه
ژوند بې ابدي دے څو چې وي چېرته مړه نه شوه
ځکه په قرنونو د مين هيله مړه نه شوه
ستا د تصور ډيوه مې هېڅرې مړه نه شوه
څو چې سم په لاره تېرېدلې نه يم زه

بیا د بېلتانه په سخت ترور کښې لکه اوبنکه
هم د هجر سوځنده تنور کښې لکه اوبنکه
یا د غم په خوځنده انبور کښې لکه اوبنکه
ستا د اننکو په تصور کښې لکه اوبنکه
ولې څوڅو ځله څڅېدلے نه یم زه

غم، خندا، بنادی دې خدایه واړه سره ګډ کړل
هجر او وصال دې ماله د واړه سره ګډ کړل
اور اوبه دې خدایه په څه غاړه سره ګډ کړل
عشقه! څوکه مرګ او ژوند دې دواړه سره ګډ کړل
بیا هم په غایت یې پوهېدلے نه یم زه

ما خو به دا سوځنده نظر تل د رپسې کړ
سم به بدرګه شو بیا به یې څار ستاد کوڅې کړ
غم، غصې، تشویش به اور زړګی ته راپسې کړ
څه به مې علاج د غیریت د وسوسې کړ؟
بنه! چې خپل محفل ته دې بللے نه یم زه

نن یې یم پاللے تشکر کومه و یاړم
بیا به رسوا نه شی د یارې اتزې نغاړم
دا دے زه «چشتی» د حقیقت خبرې ژباړم
ولې به «حمزه» لکه سحر په وینو ژاړم
هیڅ د چا په غم چې خندېدلے نه یم زه

۸/۵/۱۹۸۶

د استاد دوست محمد کامل صاحب په غزل :

---

۳۰ / ۹ / ۱۹۸۷

سرې دې شونډې که عقیق دی په یمن کښې
ستا د حسن بنکلا نشته په ګلشن کښې
سپین غابښونه دې ځلیږي په دهن کښې
دا دې څه ایښي د زلفو په شکن کښې
چې آهو دې اوتر کړي په ختن کښې

د الماس شغلې په کان کښې نه ځایږي
څه بنکلا ده په جهان کښې نه ځایږي
خوشبویي مې په ریحان کښې نه ځایږي
بوی په ګل کښې ګل په ځان کښې نه ځایږي
چې له نازه ته خرام کړې په چمن کښې

دولت نه لرم په مینه دې ودان کړم
په غمونو مې پالې زه دې خندان کړم
محبت د زلفو هسې په زندان کړم
کرشمو دې د هلک غونډې نادان کړم
که زه طاق ومه په هر علم او فن کښې

چا د شمې غونډې او ریه خپل سر بل کړو
څینو باغ کښې ګل بلبل ورسره مل کړو
چا د یار په مینه دار او رسن بنکل کړو
ته خولاړلې پردے وطن دې خپل کړو
زه پردے شومه بې تا په خپل وطن کښې

ترجانان به شم فدا پښتو مې خوی دے
په یاری کښې کرم وفا پښتو مې خوی دے
ځار ژوندون تر یار زما پښتو مې خوی دے
زما خاوره پښتو خوا پښتو مې خوی دے
د وفا خوی مې اخښلے ځان و تن کښې

توفانونه ، شبخونونه به بېدار کړم
بیا به خپل مخ زه په لوری د دلدار کړم
مجنون قیس به د تولی خپلې سردار کړم
د اسمان له ستڼکونو به څه ډار کړم
چې پالمه تندرونه په خرمن کښې

زه به ساتم خپل نغرے په خپله توره
"چشتی" هم وائی چې ستا بلا شوه دوره
نغمې نه اورم د پردیو له تنبوره
د باګرام فضا د ژوند له نغمو پوره
د "کامل" غزل چې خورشو سره بن کښې

د مرحوم طاهر کلاچوی پر غزل مخمس :

٨/ ٩/ ١٩٨٧

رندان یار ته رندانه ورغاړه وځې
خپل جانان ته جانانه ورغاړه وځې
مستانه ته مستانه ورغاړه وځې
دیوانه ته دیوانه ورغاړه وځې
فرزانه ته فرزانه ورغاړه وځې

د اغیار بهر رتلو په خوښې کښې
د حجرې قارغولو په خوښې کښې
د توبې و ماتولو په خوښې کښې
د عشاقو رابللو په خوښې کښې
صراحی ته پیمانه ورغاړه وځې

تاسو واورئ شاعرانو لـرو برو
چې پوهېږئ د ادب په ملغلرو
د غه سوال مې د ضمير د ے باهـنرو
کيـفيت بـه يې د زړه څـه وي ملګرو؟
چې ډيوې ته پـروانه ورغاړه وځي

عالمونه په دې راز سره ژغـېږي
تل د هيلو بڼ غوټه شي وغوړېږي
بنايستوب ته د چاسترګې نه پټېږي
په زړګي د مشاطې به څـه تېرېږي
چې ستا زلفوته شانه ورغاړه وځي

پيوند نه غواړمه زړه ته چاک يې نشته
هغه مئ چې مانشه کړي تاک يې نشته
له «چشتي» به ګيله څه کړې واک يې نشته
که «طاهر» ته خوا ورنه کړې باک يې نشته
د ستا غم خو روزانه ورغاړه وځي

د پروفېسر نوازطائر په غزل :

۱ / ۱ / ۱۳۶۴

په خیالونو دې زه ویارم په ما بـرې
اعتبار به دې ستایمه معتبرې
سر مې ستا په لومه اېښې دے سرورې
ستا په مینه کښې څه خوند دے زورورې
چې خبرې مې له خولې راځي نادرې

زېږ ځپښلے ستا په غم کښې نن سیالی کړم
د ادب د خاوندانو صرافي کړم
اوس به خپله پوښتکۍ د زړه خالي کړم
بې پروا له زمانې سخن سازي کړم
ستا له رویه په تار پېیم ملغلرې

هم د یار له محبته مې توان وموند
د سپېڅلی زړه له پته مې توان وموند
بیا د عشق له برکته مې توان وموند
د ګلرخ له نزاکته مې توان وموند
کنه وې د غه قصې ډېرې ژورې

غمازان لاره کښې څاوې راته کینی
که هرڅو رقیبان څښنی د زړګی وینې
له لیدلو مې د یار سترګې شی وړینې
بدرګه مې د یار مینه ځار له مینې
چې یې تولې خطرې کړې رانه لرې

د ښایست رڼا دې زما له زړګی نه ځی
ستا په درکښې مې شپې شپې دی ورځې ورځې
تن مې خوځی، زړه مې خوځی، روح مې خوځی
تن مې سوځی، زړه مې سوځی، روح مې سوځی
ستا یادونه مې تن خوری لکه بمبرې

هومره مینه خدایٔ له خپلې راستۍ راکړه
چې یې نورو پیوند و ته بیانی راکړه
زړه مې ورکړ، دې په درکښې ناستی راکړه
دا د چا مینې دا داسې مستی راکړه
موسیقار غوندې چې سېځُی مې سندرې

په «چشتی» فضل وکرم رب الجلیل کړو
چې وصال ته یې هم ستا پرتو دلیل کړو
روح مې ویاړی که بدن مې خه علیل کړو
ستا جمال دا د «طائر» زړګے جمیل کړو
ځکه وینم ستا یشریکښې دلبرې

د هېښ خلیل په غزل :

۲/۱۰/۱۹۸۶

۱

د اشنا په لاس کښې هر څیز لومه دام شی
یار چې وویښه زړه مې په سلام شی
د هوس نیلے یې هسې په لګام شی
د ګلشن په سیل روان چې خوش خرام شی
ګل د خپل ځیګر په وینو خون اشام شی

د ځوانۍ په توپو ستا ګالګونې زلفې
د واعظ په پندو ستا ګالګونې زلفې
د فطرت په دودو ستا ګالګونې زلفې
دا د خط په شینکو ستا ګالګونې زلفې
لکه شین طوطی په لومه یا په دام شی

زما د هیلو پاڼې ژېړې شوې رژېږي
ټول صورت مې نن خولې شو او بهېږي
د جانان وارې خطا نه ځي لګېږي
چې بې واره د ښو غشي وربېږي
په مقتل د زړونو څومره قتل عام شي

د روسانو ظلم زور د شیطنت دے
ټول جهان د دوی له شره په هیبت دے
سور څادر بې غوړولے د نکبت دے
هر جارح لره اعلان د مذمت دے
که په خاوره د افغان یا د ویتنام شي

لاس دې ځار شم ما خو وو له په غونډې
زړه مې واخله پکښې ویلته بلونډې
د عشاقو زړونه تل معشوقې سکونډي
په ایام د نوخطې کښې دې سرې شونډې
لکه موج د سرو شرابو کښې د جام شي

د هیبت پرتو یې هسې په لار پرېوځي
لکه دم د پاړوګر چې په مار پرېوځي
یا لوګې وی له اورتونه په ښار پرېوځي
چې غبار یې نوے خط په رخسار پرېوځي
د نیمروز په قلمرو باندې ماښام شي

د اغیار کلاوې ورونه به یې مات شي
د تزویر بندونه پلونه به یې مات شي
پرښې، څوکې، کاڼي، غرونه به یې مات شي
دا د سر د هوا پرونه به یې مات شي
چې خبر د خپله خطه د انجام شي

ما خوشبو کړې د اشنا په ښو ترابو
تنده کله ماتومه له سرابو
"چشتي" وشمېره له دلې د خرابو
که یې وښاځې په جام او په شرابو
دا "همېش" به دې د تول عمر غلام شي

۲۰/۱۰/۱۹۸۶

۲

زما په حال کښې ستوري وخندل په ښکلي ګوري بله کړه
ماته يې راپام شو او خبره يې بدله کړه
ځان يې کړ مشغول نو زمزمه يې د ا غزله کړه
وخانده سپرلي د زړه په دښته کله کله کړه
بيا د خپل ښايست د رنګينيو ډېوه بله کړه

خوښ يم ستا په مينه د ل افکاره خوجانانه نن
غم که مي هر څو شي بې شماره خوجانانه نن
څه څوچې يم په د غه لاره خوجانانه نن
ستا د لايزاله ژوند د پاره خوجانانه نن
ما د خپلو ويښو اخري قطره هم تله کړه

برچې د عشاقو بـهیر ته کوهسار ته وختم
چیغه مې د حق په خوله راتله مینار ته وختم
ملې مې فرښتې د اسمانونو ښار ته وختم
زه په تنهایو کښې د فکرونو دار ته وختم
عشق کښې د منصور سره شامله چې ماڼه کړه

هرڅه چې بدلېږي په مضمون د جهان پوه نه شوم
وسومه ، ایرې شوم د ژوندون په خزان پوه نه شوم
پوه نه شومه خدایه د اشنا په زبان پوه نه شوم
هیڅ دې د اعجاز د رنګینو په بیان پوه نه شوم
تا چې مفصله افسانه خپله مجمله کړه

مینې دې اشنا زه په همزولو کښې ودان کړمه
ګورې مې عالمه راز د عشق یې نکته دان کړمه
یار ته چې تسلیم بم په رښتیا یې زه د ځان کړمه
زه یې لاس نیولې د مقتل په لور روان کړمه
ته که تماشا د تماشې کړې نو راهله کړه

ځيرې کړيوان ، سر ببر تشهير نه په سرنه تيم
يار مې وياړي د اهم خپل تدبير ته په سرنه تيم
شوم قربان د يار خپل د ا تطهير ته په سرنه تيم
زه د خپل کردار انجام تقدير ته په سرنه تيم
دا هغه ګناه وه چې هم ما به کله کړه

ما غوښت سپيڅلتوب څکه روان په دې سبيل شومه
عشق وو سوځېدمه زه د دې لارې دليل شومه
يار چې زه د ځان کړمه که هرڅو هم عليل شومه
عشق وو د "جبران" د خليلتوبه چې خليل شومه
ما د تخلص نامه په دې وجه بدله کړه

دا بنه شوه جانان د بېزارۍ په ژبه نه پېژنې
خدای مه کړه چې دې به د يارۍ په ژبه نه پېژنې
مه وايه اشنا د دلدارۍ په ژبه نه پېژنې
دا چې د "همېش" د خاموشۍ په ژبه نه پېژنې
خدايه ! د رقيب دغه درازه ژبه لله کړه

د ښاغلي محمد صديق پسرلي پر غزل مخمس :

١٢ / ٨ / ١٣٦٦

تل مې ياد ېږي زموږ واړو ارمانجنو وطن
ډېر په رښتيا دے د ښايست او د نمانځنو وطن
داسې نخو مه وے " د ويرجنو او غمژنو وطن
د خېل او بل په وينو سور شو د يتمنو وطن
د پلنو د ښتو، لوړو غرونو، شنو لمنو وطن

"دارالايمان" ده په رښتيا دا د سپېڅليو حاله
ورکه يې مه کړې د ښايست د ننکوکلو ځاله
روس ته به ماتې ورکوي دا د اتلو ځاله
د عقابانو، د بازانو، د بلبلو ځاله
د ننګياليو، توريالیو، د خوږ منو وطن

په "اریانا" کښې د "یما" تاریخ یې وژړاوه
امن پسنده قام یې سرو اورو کښې ودراوه
سپېځلے قام یې اوس په څه ظلمو کښې وکړاوه
د کین په حکم د پستۍ په لمبه وسوځاوه
خلق و پرچم یعنې بې شرمه غونډې بنو وطن

د امن او سولې لوزنامه روسیه تا ماته کړه
ها د کلونو څنګلورې دې بې پروا شاته کړه
اوس دې وهنه په مونږ پورده د اخوتاراته کړه
د نړۍ سپینه ملغلره "هرې" چا ماته کړه؟
چا "کندهار" کړ د بې ګورو بې کفنو وطن؟

غله رهزن دېر دی خود روس غونډې خرمن نه لوټي
بې له وحشیانو هېڅوک ګل د هیڅ ګلشن نه لوټي
د اسې بې باکه به د دنیا هیڅ کبرجن نه لوټي
د فرښتو ځاله دې خدای په اهریمن نه لوټي
د جرګو کور دې نه کړي ربّ د میرځمنو وطن

د بې وطنو وطن زمونږ د ے "پاسنیه" که نه؟

"چشتی" د غم په اور وریتیږه سیپلنیه که نه؟

په مونږ به هم دا لمر راخیژی ای زلمیه که نه؟

هاله به شا مدام اختر وی "پسرلیه" که نه؟

چې له پردو ځنې وی پاک د بې وطنو وطن

د ښاغلي عصمت قانع په غزل :

۱۳۶۶/۸/۲۴

غورهار، تکا او ژوړ د ے د سېلونو په وطن کښې
طوفانونه، برېښکې دي د باغونو په وطن کښې
مرګ و مېړ دے او غزا ده د مېړونو په وطن کښې
د سپېره خزان سلطه ده د راغونو په وطن کښې
بهارونه مرور دي د ګلونو په وطن کښې

نشې څه د حق سنګرنه یاران مست کړه په مرحل کښې
له غلیم د فاع ته د رومه هلته خوند دے په اجل کښې
د شرشم ګله مې پټ کړه ځای دې نشته په وربل کښې
د تنکي ګلاب ښایسته نور دې نه ستایم غزل کښې
اوس د سرو زخمونو وار دے د شعرونو په وطن کښې

تر سرونو مو لوګے شم د وطن نګهبانانو

زه د رحار شم له ما واوړئ ای اتلو افغانانو

د غه وار د ے د رغلے ځان ته وګورئ ځوانانو

د پے محو صفت پرېږدئ د سرور غزل خوانانو

له ویرونو سره مله شئ د ویرونو په وطن کښې

سره وحشی قتل وقتال چې اوس جوړ کړے په افغان د ے

انسانی نړۍ ځوربږی شیبه او ورځ د غه خفګان د ے

له اخبار او له راډیونن په جهان کښې د ابیان د ے

څه د تور ماښام نوبت د ے څه د تور ماتم دوران د ے

د رښا قحطی راغلې د لــــمرونو په وطن کښې

اراهی نښته په دښته څه خند اله مانه غواړئ

باغ او ونې لښته لښته څه خند اله مانه غواړئ

کور او خونه خښته خښته څه خند اله مانه غواړئ

د خند اسپکه هې نښته څه خند اله مانه غواړئ

د مرګونو راج او باج د ے د ژواکونو په وطن کښې

پریشانه یم عالمه د ژوندون له دې ویجاړو
لېونې سپي دي راغلي زه به يې څه وایم له داړو
د امتل د پښتنو دے حلق وی لوند په خپلو لاړو
وچ شوندان دي چې ړپېږي د سراب د جام په غاړو
ساقي مه راځه ماتم د ے د جامونو په وطن کښې

د طاغوت تزویر به مات شي که هر کارېي دستوري دے
تک د حقې لارې زده کړه "چشتي" خدای ته منظوري دے
چې د خدای په لاره سم وي مجاهد د ے مغفوري دے
اناالحق يې هر اواز دے هر فرياد يې منصوري دے
"قانع" داچيغې زده کړې د دارونو په وطن کښې

## حمد

طبعزاد مخمسونه :

۱ ۱۹۸۶ / ۱۲ / ۱

خدایه ! ستا په خدایی ماته ټینګ ایمان را
چې قربان شي ستا په لاره هغه ځان را
له بدۍ او بدکارۍ ماته امان را
ای خالقه ! بندګۍ ته ته توان را
چې ثنا صفت دې وکړای شم زبان را

تا خلق نه کړم په جماد او په نبات کښې
ما به ته کړې د ښېګڼې په ثبات کښې
اراده دې زما وکړه په حیات کښې
تا پیدا کړم د آدم په ذرّیات کښې
اوس پندار، ګفتار، کردار د ښه انسان را

ستا تکوین د کاینات او جهان بنه دے
هر یو ګکې دې خوندی په خپل ځان بنه دے
لعل که بنه دے معلومیږی چې کان بنه دے
ستا په ملک کښې ای خالقه! انسان بنه دے
انسانی خوی او خصلت ما ته اسان را

د تقدیر برخه هیڅ نه ده کټلې
چې له تا ده هغه برخه ما منلې
له قسمته زیاته چا کله خوړلې
د انسان مینه خو تا ده راښښلې
اوس اظهار د دغې مینې ته بیان را

په ژوندون کښې لویه خدایه سمون غواړم
اراده او بنه اخلاص د مجنون غواړم
په ټولی د عاشقانو کډون غواړم
د انسان په محبت کښې ژوندون غواړم
ماله ته د دغې مینې لوی جهان را

په تېرو کښې عمر تېر شو، تېر به څه کړم
هاچې تېر شو هغه هېر شو، هېر به څه کړم
بې ثمر عمر که ډېر وی، ډېر به څه کړم
د نېکانو او بدانو شمېر به څه کړم
ماته خدایه! له نېکانو ته دوستان را

د عادل ښېښتن لویه لویه اداره ده
له خپل کړه ښخه مې روح په تراره ده
دا هستي چې د انسان په نندارہ ده
کاینات د انسان ښکلې هنداره ده
ما «چشتي» ته ځان لیدونکې ښه چشمان را

۱/ ۱۲/ ۱۹۸۹

## نعت شریف

۲

د کايناتو د خلقت د اساسونو بنا
د مرګ او ژوند او د جمله امتحانونو بنا
د عرش او فرش او د عقبا د جنتونو بنا
هغه زما د تخیل او د فکرونو بنا
هغه زما د ژوندانه د ارمانونو بنا

لوړې، ژورې، سود، نقصان يې برملا کړلو تول
د سمو، چپو لارو خلک يې هم جلا کړلو تول
د خدایُ رضا د تکوین غوښت يې هويدا کړلو تول
چې کاينات د ده له رویه خدایُ پيدا کړلو تول
هسې تابان چې د افلاکو د رنګونو بنا

د ذهن او زړونو د سموالی د ښایست راوړونکے
د ښو اخلاقود ښه والی د ښایست راوړونکے
د مومنانو د وروروالی د ښایست راوړونکے
د وروولۍ او د یووالی د ښایست راوړونکے
داسې ښایست چې د اخلاقو د مزلونو بنا

عطوبه تل ترې لټېدل تا وې دسته د ګلو
هومره زیبا او ښایسته لکه غنچه د ګلو
یو ګل به څه زه ورته وایم وو باغچه د ګلو
نوے موسم، نوے پسرلے، نوې ورمه د ګلو
زما دلدار د خدایٔ رسول[۳] د عزتونو بنا

د ټول بشر تبلیغ یې وکړ نه حیرانه شو دے
تل له ارشاد او له تبلیغه نه بې ځانه شو دے
د ستونځو، ربړو له لېدو نه پښېمانه شو دے
د حقې لارې په مزله کښې نه ستومانه شو دے
د انسان پالو طریقو او عظمتونو بنا

په ده درود شارع په ټول ثواب کښې وستایلو
زه مې ترې چارکړې ماپه وینه خواب کښې وستایلو
دخدایٌ رویدار هرچا په فصل وباب کښې وستایلو
چې یې اخلاق خالق په خپل کتاب کښې وستایلو
دے د ښېګړې، راستکارۍ، ښو سبقونو بنا

د خدایٌ خاصان او ملایکې ټول په ده دی شیدا
څه چې ښېګړې او نیکۍ دی شوې له ده هویدا
سخ د هغو دے چې د ده په محبت شول فدا
"چشتی" ترې ځارکړې کاینات د ده له مخې پیدا
د ښو افکارو، ښې وینا، ښو عملونو بنا

# د هجرت لمړی ورځ

۱۳۶۶/۷/۱۲

## ۳

اوښکې بهېدې په مخ کړېوان راسره وژړل
دا ربښتیا خبره چې ټول ځان راسره وژړل
هومره د ېرخفه شوم چې خفګان راسره وژړل
ووتم له کوره هر خپلوان راسره وژړل
تلم چې له وطنه زوړ او ځوان راسره وژړل

نغښتې په څادر کښې را رهی وم په میروکښې زه
ودو راتېرېدمه د نیکونو هدیرو کښې زه
تلم په لوړه، ژیته، خاوره، لوټو او ایروکښې زه
کله چې راسم شومه د لارې په تیږو کښې زه
پورته مې کتل چې خپل اسمان راسره وژړل

سوچ مې طوفاني وو، ټپرېدمه له دې غمه کښې
ما وې غچ به واخلو، بنه چې موږ نه يو په کرمه کښې
روس هغه طاغوت دے په تابوت به شي نهمه کښې
توپې، طيارې وې د دښمن، په غوره او سمه کښې
مخ ته رمه راغله او چوپان راسره وژړل

ټول افغان ته روس چې د وفا خپلې وعده وکړه
څه د سياست په مهر وړ چال يې افاده وکړه
بيا په څه تزويرې د سپينوالي شهاده وکړه
وروستنه په دوستۍ کښې روس تيرې ته اراده وکړه
ما ژړل، وطن ژړل، زمان راسره وژړل

هر سړے وطن کښې د حيرت په تار تړلے وو
ځان له هرچا ورک وو کواکې خپل ځان يې خوړلے وو
فکر، هوش مې نه وو، عقل غم له ما شړلے وو
چوپه چوپيالي وه ټول هېواد په وير لړلے وو
راغلمه بهير ته ټول کاروان راسره وژړل

مه شه په چاور، لستوڼي ټول روان په مار پسې
تار د عمار هسې هر چا وې راځي په تار پسې
ځېنې ستړکور به کړ ځېندل په سمه لار پسې
هر څوک د ضمیر خواست هڅول په یوه کار پسې
زه د هجر غېږ کښې وم هجران راسره وژړل

واړه افغانی ملت ای روسه درته وایو موږ
تا له خاورې باسو د روم ټول په دې سلایو موږ
جنګ به کړو، دفاع به کړو، ترهغه چې څو پایو موږ
مړي شهیدان „چیشتی„ ژوندي کړه غازیان یو موږ
ژوند، یو ازمېښت دے امتحان راسره وژړل

## روس ته خطاب !

۱۳۶۶/۷/۲۰

۴

هرڅوک چې ظلم زیاتې کړې و لمسیږې په موږ
ای د تزویر پردو کښې نغښتو! اوس لوڅیږې په موږ
څو ورځې ، جامه او کور ویونکو رسوا کیږې په موږ
د استبداد ای ناروا بمو ! وریږې په موږ
دا ازمیښت دې د ربهو اوږو بلیږې په موږ

په یرغلونو او بمبارد له غصې ډک به شو نور
چل او تزویر د ملحدانو ته لاڅک به شو نور
هر یو بچوټې د افغان بم او ټوپک به شو نور
که د سندان په څېر پلکونه خورو لاکلک به شو نور
خدای ته راسره دې، د دې مو پالی مه څوریږې په موږ

رفا پالونکے امنیت به ظالمان ورکوی
خبریه ځانګي د ټولني هر نقصان ورکوی
زوراوتېرے لمسون په ګډه ټول جهان ورکوی
روسیه ! ستا د چل دامونه به افغان ورکوی
د "تزار" میني ته به بېرته بیا ستنېږې په موږ

د کرېملین په پلاز ناست امن شکستو واورئ
د خونخوارئ، آدم کشی پلیتو پستو واورئ
د سمي لاري او سم ژوند بې بند وبستو واورئ
ای د لویئ او بغاوت په میو مستو واورئ
منشا د کل مو ورکول غواړی ورکېږې په موږ

ازادمنش دی افغانان ظلم سيلے نه شی
د بل تر سیوری لاندې ناست کښته کتلے نه شی
ناروا حکم د پردو په ځان منلے نه شی
افغان اولس زیاتے غندی تېرے زغملے نه شی
د فرعونیانو له مسنده به کوزېږې په موږ

په ظلم او زور د حصار شوي ملتو پاسدار و
د غار تګرو، لوټمارانو خوتنو رازدار و
د مزدورانو له تنخاګو او خولو مالدار و
"مارکس" او "لېنین" د رپورې خاندې مسکو واګدار و
قدرت نشه کړې وېده شوی اوس وېښېږي په موږ

حق د انسان ته کمونست ډېر شرمېدلی دی اوس
انصاف د تاسو له مارکسسته څخېدلی دی اوس
زړه د هر غړي له دې زهرو پړسېدلی دی اوس
دی شلم قرن ټول بشر بشه پوهېدلی دی اوس
روسه نادان یې چې په درست جهان ګرمېږې په موږ

که ارمینان او تاتاریان او اوزبکان دې کړو لوټ
که د خیوې او بخارا مسلمانان دې کړو لوټ
که قرغېزیان او قزاقان او ترکمنان دې کړو لوټ
که د تاشکند او ثمرقند باغ وبوستان دې کړو لوټ
"افغانستان" د سرې اور، اوس به سوځېږې په موږ

که انسانان په ظلم وژنی، جان وتن ؤړه کوی
ظالم د نورو وطن سوځی خپل وطن ؤړه کوی
چې ذروی چاودنې کاندی خپل ختن ؤرکوی
تاریخ شاهد دے ظالمان اخر خښتن ؤرکوی
موږ ته مو سپک نظر کولو اوس سپکیږئ په موږ

د پر ملتونه ورکیدل نن د غه ورکه وایی
چې مو ظلمونه پرې کول اوس هغه زمکه وایی
پولینډ د "ورک شه" ناری تل د رته په کرکه وایی
د خدای په کهو ړ موږ یاور دے "چشتی" ځکه وایی
تل لا ړوال ستاسو شعار وو اوس ماتیږئ په موږ

# خواجه معین الدین چشتی اجمیری

در سال ۵۳۷ هجری در حوالی سنجر سیستان دیده بدنیا گشود و در خراسان نشو و نما کرد. خواجه معین الدین در سن پانزده سالگی پدر خود (خواجه غیاث الدین) را از دست داد و وارث املاک پدر گردید. پدرش باغ مثمری خوبی برایش بموروثه گذاشته بود.

روزی حضرت خواجه معین الدین در باغ نشسته بود، یک نفر مجذوبی مشهور به درویش ابراهیم کندوزی براین ساحه گذر داشت در باغ داخل و آنجا نشست. با معین الدین در صحبت باز نمود، از نگاه و اثر مصاحبه اش خواجه صاحب چنان تأثر برداشت که تمام املاک موروثی پدر را فروخت و به فقراء و مساکین محلی قسمت نموده و خودش شروع به مسافرت

کرد، بسوی بخارا و سمرقند رهسپار گردید آنجا به حفظ
قرآن مجید و فراگیری فقه و علوم متداوله پرداخت، سپس
سفر خود را ادامه داده به قریهٔ هارونی که از توابع نیشاپور
است رسید، بخدمت شیخ عثمان هارونی مشرف گردید - از
فیضش باریاب و مرید شد. بعد از مدت تربیت روحانی
خرقهٔ خلافت پوشید و باشارهٔ پیر راهی عراق گردید
در عرض راه بخدمت شیخ نجم الدین کبراء رسید، مدتی
در مصاحبت آن بزرگوار اقامت گزید بعد به بغداد واصل
گشت و صحبت شیخ عبدالقادر گیلانی را دریافت و به کسب خرقه -
پوشی شیخ نیز نائل آمد. گویند باشارهٔ وی در آواخر خواجه -
معین الدین چشتی راهی هندوستان شد که اول به لاهور
رسید مدتی معتکف مزار خواجه سید علی هجویری شده بهرهٔ
روحانی کافی یافت، قطعه رباعی در آنجا سروده و تاکنون بر
دیوار روضهٔ داتاگنج بخش هجویری ثبت است -

این روضه که بانی اش شده فیض الست
مخدوم علی راست که با حق پیوست
در هستیٔ خود نیست شد وهستی یافت
زان سال وصالش افضل آمد از هست

باری لاهور هم نتوانست خواجه را در خود نگهدارد - وی
راهی دهلی شد و قصد داشت در دهلی سکونت اختیار نماید
ولی کثرت مریدان و هجوم مراجعین خواجه را واداشت تا تصمیم

ترک دهلی نمایند و عازم اجمیر گردیده اهالی آنجا باستقبال شایانی به پیشواز وی آمدند. مسکونین اجمیر که اکثراً هندو بودند از تعلیم اسلامی خواجه صاحب به شرف اسلام مشرف گردیدند، آنهائیکه اسلام نیاورده بودند هم به خواجه صاحب احترام زیاد داشتند. خواجه صاحب در اجمیر دختر وجیه الدین عم خواجه حسین خنگ سوار مشهدی را بنکاح در آورد. در سال ۶۳۳ هجری از قضا الهی به عمر ۹۶ سالگی رخت از جهان بربست. انا لله و انا الیه راجعون. مرقد مبارکش در اجمیر شریف زیارتگاه خاص و عام گردید حضرت خرقهٔ خلافت را به حضرت خواجه قطب الدین بختیار-کاکی صاحب سپرد.

حضرت خواجه معین الدین در هند به لقب های ذیل یاد میشود:

خواجه اجمیری

ولی الهند

غریب نواز

خواجهٔ خواجگان

سلطان الهند و غیره .....

آثار وی عبارت اند از:

۱- انیس الارواح

۲- حدیث المعارف

۳- دلیل العارفین
۴- رسالهٔ آداب دم زدن
۵- رساله در تصوف
۶- رسالهٔ وجودیه
۷- کشف الاسرار
۸- گنج الاسرار
۹- مکاتیب
۱۰- دیوان غزلیات .

حضرت خواجه معین الحق و الدین هفتاد و دو سال در نیم قاره هند امرار حیات نمود . این شخصیت عظیم عرفانی که متخلق به خُلق رسول و متصف به صفات نیکو حضرت رسول ثقلین حضرت محمّد صلی الله تعالیٰ علیه اجمعین بود . هرچند پیغمبر نبود ولی تاثیر فیض و برکتش ملیونها انسان بود ائی مذهب هندو را بنور اسلام مشرف گردانید . زیرا وی نه به مال و جاه دنیا چشم طمع دوخت و نه به ملک وحشم علاقه نشان داد . نیک اندیشی نمود و نیکوئی کرد . چنان بخدای خود بندگی بجا آورد و به مخلوق وی خصوصاً انسانها محبت و رواداری نشان داد که فروغ روحانیتش در آن سامان جامعهٔ خاص اسلامی بوجود آورد. وجود هشتاد خانقاه چشتیه در هند و پاکستان کنونی برای تنویر و تربیت روحانی مسلمانان از اثرات وی است .

پرتو نور و فیض اخلاقش ، اخلاص در نهاد مردم بوجود

آورد - آداب معاشرهٔ آن سرزمین زبان زد عامهٔ مردم جهان گردیده اند . موسیقی را که غذای روحی اهالی هند بود برای جذبهٔ عشق و اخلاص، محفل های روحانی مسلمانان استخدام نمود و مردم به سماع می گریستند ، بی هوش می شدند و تربیت روحانی میافتند . میگویند راجهٔ اجمیر عدهٔ مرتاض را خواستند و گفتند که بحضرت خواجه جادو کنند به سحروجادو مغلوبش نمایند ، ولی خواجه آن عابد ، متقی و عارف حقانی سحر و جادو را برهم شکست و فیض روحانیتش باعث رهنمائی و هدایت آن مدعیان وقت گردید -

خلص آنچه رحمت العلمین حضرت سرور کائنات برای رهنمائی وتنویر انسانهای دور و پیش عمل می فرمود و مردمان سیه کار و گمراه را به شهرای هدایت و فلاح رهنمون میساخت . این فرزند و امتی برومند ش در وقت خود بعمل نیکو ، خُلق حسنه ، تقوا و تبلیغ حقه عمل مینمود و برکتش تا امروز در اخلاص و صدق مسلمانان نیم قارهٔ هند امتیازی خاصی دارند -

در نشر دین اسلام کاریکه شاهان و امپراتوران تاریخی از قبیل سلطان محمود غزنوی ، ایدالی ، غیاث الدین و شهاب الدین غوری وشیرشاه سوری به زور شمشیر و قوهٔ لشکری نموده اند به مراتب بیشتر و عمیقتر همین متقیان عارف و مرشد ان راستین از راه تطبیق عملی اخلاق حسنه و دستورات حقانی قرآن حکیم و احادیث نبوی برای تنویر جذب و انسجام جامعهٔ اسلامی نموده اند که تا

امروز بر روی کرهٔ خاکی مسلمانان زیاد گردهم جمع آمده و ندا حق اسلام را بلند میدارند. درین عصر علوم سایئنس و کامپیوتر که ذهن انسانها به رموزات جهان مادی آشنا شده و روز بروز آشناتر شده می رود ، ضرورت است به عرفان و صفائی پندار و کردار که از راه تربیت اخلاقی ، محبت ، عدل و انصاف ، رواداری و خدمت خالصانه بابنای نوع بشر را عملاً از مکتب اخلاق محمدی بمردم شائع و رواج داد . جوامع بشری کنونی سخت نیازمند است تا اخلاق نیکو انسانیت را ذهناً و عملاً دریابند ، فلهذا تزکیهٔ نفس ، تقوا ، خیراندیشی وخیررسانی بابنای نوع بشر باسلوب ، طریقه و هدایت رحمت العلمین را عملاً باید نشان داد وتمرین و تطبیق نمود و نام آنرا آداب انسانی نهاد . این کار به مرتبهٔ اول وظیفهٔ همه مسلمانان روی زمین است وباید تربیتگاها ، آموزشگاها ، مجاهده وجهاد فی سبیل الله ، حمایه و رواداری ، ایثار و قربانی ، محبت و اخلاص وانساندوستی را بوجود آورد . ساحهٔ کرهٔ خاکیٔ زمین را باید یک باغچه ، جشن گاه مهمانخانه و مسافرخانه ( رهایشگاه ) اشرگاه ، صحنهٔ بذل و داد ، نمایشگاه انسانیت ساخت . بدی را به بدی نباید علاج کرد ، بلکه بدی را به نیکی ، رواداری و محبت انسانی محو و نابود نمود .

برای رسیدن باین مامول باید طریقهٔ صفائی آئینهٔ دل وضمیر انسانی را آموخت ، مشق و تمرین عملیٔ آنرا به مجاهده

دریافت که همین فهم و دانش ، سعی و کوشش
عملی را تصوف می نامند.
درین عصر از دین بدون دانستن و عملی نمودن تصوف
استفادهٔ اعظمی ناممکن است.

"چشتی"

## نعت شریف

۱۳۶۶_۳_۲

۱

چینید لعل وگوهر شد کان ما محمدؐ
خوشبو است دور آفاق ریحان ما محمدؐ
معنون جمله هستی است عنوان ما محمدؐ
در جان چوکرد منزل جانان ما محمدؐ
صد در گشاد در دل از جان ما محمدؐ

کان اوج لی معه الله شایان شان احمد
صد نی نواز داریم از نیستان احمد
گل ها شگفته بینم در بوستان احمد
ما بلبلیم نالان در گلستان احمد
ما لؤلوئیم و مرجان عمان ما محمدؐ

بر حضرتت خدایا ! جوینده ٔ پنا هم
توبه کنان به پیشت هنگام صبح وشا هم
بر جمله ٔ خلایق خوشبین و خیر خوا هم
مستغرق گنا هم هر چند عذر خوا هم
پژ مرده چون گیا هم باران ما محمدؐ

سوزنده داغ و بریان ما را چه غم چو سازد
زین ریشها و درمان ما را چه غم چو سازد
از لکه ها بدامان ما را چه غم چو سازد
از درد زخم عصیان ما را چه غم چو سازد
از مرهم شفاعت درمان ما محمدؐ

هر چند بهر عشاق صد فتنه زین دو در شد
افراشته سری باد کز عشق در بدر شد
فرزند عشق زاد است کان پیر و پدر شد
امروز خون عاشق در عشق اگر بدر شد
فردا از دوست خواهد تاوان ما محمدؐ

جانان می ستائیم در راه وی فدائیم
هر روز جبّه سائیم چون بندهٔ خدائیم
تکبیر او بخوانیم و تسبیح می نمائیم
ما طالب خدائیم بر دین مصطفیٰ ئیم
بر درگهش گدائیم سلطان ما محمّدؐ

از ماست هست و بودی وز جان و دل درودی
بر خالقم سجودی بر مصطفیٰ درودی
تا باشدم وجودی هر آن صد درودی
ای آب و گِل سرودی وی جان و دل درودی
تا بشنود به یثرب افغان ما محمّدؐ

«چشتی» تو در زمینی هر ذره دل نشینی
رمزیست دل نوازی زان بوالعجب که بینی
حسن قدیم تا بد آئینه اش نوینی
در باغ و بوستانم دیگر مخوان «معینی»
باغم بس است قرآن بستان ما محمّدؐ

۱۳۶۶_۳_۶

۲

خوشا که آب من از جوی دوست می آید
فدای رایحه کز سوی دوست می آید
ازان خوشم که سرم خوی دوست می آید
مگر صبا ز سرکوی دوست می آید
که از زمین و زمان بوی دوست می آید

جفای غصه وغم هااست می نهم هرشب
چو باد بر سر اغیار می وزم هر شب
لبان خویش به تکرار می گزم هرسب
چه رشک هااست که از یاد می برم هرشب
که روی او زچه بر روی دوست می آید

سوای زخمهٔ مطرب چو نغمه نارد نای
زما مجوی بجز حبّ یار زهوش وز رای
هر آنکه درد رسید است گویدت وای وای
ز کوی دوست چو عاشق کشیده دارد پای
کمند شوق هم از موی دوست می آید

به هر کجا که رسیدیم اوست دست بدست
ز اوست هر چه بدیدیم روی فتح وشکست
حقاکه باتو گرو بودیم ز روز الست
وفا چگونه کند عقل وهوش بامن مست
چنین که جام هیا هوی دوست می آید

حریم کوی حبیب است مر تو را بهتر
بهدیه گر بپذیرند ده چه پا وچه سر
وسیله ایکه ترا میدهد چه خاک وچه زر
هر آنچه آیدت از غیب نیک وبد منگر
همین بس است که ازسوی دوست می آید

هر آنچه پیش بیاورده زوست خندان باش
که ابتلاء تو باشد مثال مردان باش
چو فتک جور خوری تو مثال سندان باش
ازین مصائب دوران منال و شادان باش
که تیر دوست به پهلوی دوست می آید

درین مزارع گیتی است فصل جو ز جو
هر آنچه زرع کنی میتوان ازان درو
تو در طریقه "چشتی" پی خسان مه دو
بیا به وعظ "معینی" رموز عشق شنو
که از حکایت او بوی دوست می آید

١٢/٣/١٣٦٦

٣

دل همی بالد و دیدار تمنا دارد
کشش روح سوی تست تولّا دارد
بستگان تو حقّاً قسمت والا دارد
راه بگشا که دل میل به بالا دارد
پرده برگیر که جان عزم تماشا دارد

من که هرجا بروم اوکشدم جانب خود
سر به صحرا بروم اوکشدم جانب خود
گاه به سودا بروم اوکشدم جانب خود
من که بیجا بروم اوکشدم جانب خود
هم ازآن سلسلۀ عشق که باما دارد

جوشد از لطف زمانی زخودم می راند

عجب اینست جهانی زخودم می راند

عجب اینست که آنی زخودم می راند

گه بخود خواند وگاهی زخودم می راند

آه ازین غمزه که با عاشق شیدا دارد

وادی عشق همی پیچد وصد بام ودراست

عاشق آنست که رو آورد وپرده دراست

دیدن یار خرد نقد کفش جان وسراست

حسنش اندر پس صد پرده چنین جلوگراست

وای زانروز که آنچهره هویدا دارد

این چه شوریده نوائیست که اندر دل ما

شرر تافته ترغیب نما، کون نما

زین همه کون ومکان شرح جدا، طرح جدا

گرچه از جان بیرون است ولیکن بخدا

که شب وروز درون دل ما جا دارد

روح جوینده ٔ ما دوش بمن داد نوید
گوش دل خوش سخنی از لب جانانه شنید
هر که درس ادب آموخت بدلدار رسید
عاقبت چهره ٔ دلدار عیان خواهد دید
هر که آئینه ز زنگار مصفا دارد

رهبر عشق توانا و شتابنده وزین
با ادب جاده ٔ تحقیق رسیده است قرین
"چشتی" زان حسن که افاق ستوده است ببین
حسن آن ماه چو خورشید پدید است "معین"
محرم آنست که او دیده ٔ بینا دارد

۱۳٦٦/۳/۱۹

۴

اثر حسن ز انداز بیان تافته است
عزت نور جبین بسکه گران تافته است
قرص خورشید ضمیرم ز نهان تافته است
این چه نوریست که بر کون و مکان تافته است
نور عشق است که از مطلع جان تافته است

یارب! اکنون چه فضائیست که از اوج شرف
زیر زیبنده لوائیست که از اوج شرف
نور رخشنده بقائیست که از اوج شرف
عشق مانند همائیست که از اوج شرف
سایه دولت او بر دو جهان تافته است

این چه نوریست خدایا ؟! که نگنجد به بیان
شرح کیفش نتوان زانکه بسوزند زبان
حسن در حسن همی مینگرم حسن جهان
بهر نادیدن خفّاش نگردد پنهان
آفتابیکه زهر ذره عیان تافته است

جادهٔ وصل رُخت چاک گریبان منست
تیر مژگان تو بر دل زده درمان منست
اثر لطف تو اندر دل بریان منست
عکس رخسار تو در دیدهٔ گریان منست
همچو خورشید که درآبِ روان تافته است

نفخه زد آتش دل از نفس سوزانم
موجه زد آتش دل از نفس سوزانم
جرقه زد آتش دل از نفس سوزانم
شعله زد آتش دل از نفس سوزانم
آه ازین سوز که بر کام و زبان تافته است

شاهد ماست سبب عاقبت آریم بکف
زین ره و رسم ادب عاقبت آریم بکف
نگشایم دولب عاقبت آریم بکف
بر سر راه طلب عاقبت آریم بکف
دولتی را که زعشاق عنان تافته است

«چشتیا» خاک شو و بادهٔ وحدت پیش آر
نفی غیراست بیا بادهٔ وحدت پیش آر
سوی رندان مبین بادهٔ وحدت پیش آر
بزم خاص است «معین» بادهٔ وحدت پیش آر
هان که مستیٔ تو بر مجلسان تافته است

۱۳٦٦/۳/۲۱

۵

هر شیوه ایکه بر تو سزاوار وی کند
خوبان کجا بمصلحت روم و ری کند
اسباب غصّه جمله ز دوران هی کند
روزیکه یار جام صفا پُر ز می کند
عاشق در آن وفا ز جفا یاد کی کند

گیرد اگر کمند تو ما میرسم بـه کام
شاهین دل چو در کف معشوقه گشت رام
در راه عشق جور و جفا نیست ننگ و نام
ساقی اگر هزار شراب افگند بجام
عاشق همی مشاهدهٔ حسن وی کند

کیفیکه زان حضور نشست در تیِ دلم
ذرّات کون جمله رود در پیِ دلم
صد کار ساخته‌است هم اندر میِ دلم
اسرار عشق در دمد اندر نیِ دلم
خود نغمه ها سراید و نسبت به نیِ کند

دلدادگان بداند و دلدار در کجاست
سالک اگر به نشئه وضو می‌کند بجاست
خاموشی از سبوی سبو می‌کند نواست
هر بی‌خودی که مست خدا می‌کند رواست
کان عربده نه مست کند بلکه می کند

در مادیات جسم بیارند نقل و چای
در عشق و در محبت کش نیست ثقل و جای
کاین کیش صدق و عشق بود نی ز نقل ورای
در وادی طلب چو نهد پیک عقل پای
دست قضا به تیغ فنا پاش پی کند

کامم ز ذکر یار لذیذ است نی ز شهد
آن طرهٔ نگار که دیدیم من به مهد
«چشتی» چه لذتیست بیا پیشتر ز عهد
گر صد هزار نامه نویسد «معین» بجهد
مشکل اگر ز عشق تو یک حرف طی کند

۱۳۶۶/۴/۲

۶

نقش پائی که نهادیم بسی روش آمد
هرکه در میکده اندر شد وبی هوش آمد
دل که بر پیخ حسم بر شده سرپوش آمد
من چه گویم که مرا ناطقه مدهوش آمد
بر دلم ضابطهٔ عقل فراموش آمد

آب در چشمه جدا، عربدهٔ نهر جداست
دشت و صحراست جدا، غلغلهٔ شهر جداست
طعم حلواست جدا، ذایقهٔ زهر جداست
سیل را نعره از آنست که از بحر جداست
وآنکه با بحر درآمیخته خاموش آمد

زلف وی عطر خوشی بیخته چون مشک تتار
همچو نوریکه زخورشید در آفاق نثار
فاش میگفت بمن گوش مبادا زنهار
نکته ها دوش دلم گفت وشنید ازلب یار
که نه هرگز بزبان رفت ونه درگوش آمد

بهر دیدار ستاد ست نقاب ازرخ خویش
طرفه بین که نهاد ست نقاب ازرخ خویش
نظرم برتو فتاد ست نقاب ازرخ خویش
شاهد غیب گشادست نقاب ازرخ خویش
تو نه ئی محرم از آن بهر تو روپوش آمد

رشتهٔ الفت ما یار تنیداست امشب
این و آنم همه دلدار خریداست امشب
وعدهٔ وصل با تمام رسید است امشب
زاهد از کوه مغان پای کشیداست امشب
به قدم رفت در آن کوچه وبردوش آمد

عطر زلفش نرسد یا ختنم کرد وداع
سبزه وحسن گلی از چمنم کرد وداع
دل زمن رفت خدایا که تنم کرد وداع
شب هجران توجان ازبدنم کرد وداع
روز وصل تو دگرباره درآغوش آمد

چرخ غربال ببین روح وتنم می بیزد
عشق بر پنجهٔ صد دیو و بلا بستیزد
دل زغم آب شده جوش جنون می خیزد
چه گهرهاست کزین سینه بیرون می ریزد
بحر اسرار الٰهی ست که در جوش آمد

آنکه در قصد فرار است میش ده ساقی
«چشتی» در فصل بهار است میش ده ساقی
عاشقت خسته فگار است میش ده ساقی
هرکه را هوش قرار است میش ده ساقی
که «معینی» ز ازل بی خود ومدهوش آمد

۱۳۶۶/۴/۸

۷

تو یک نگاه بر این محتضر کنی چه شود؟
به خاکروبی در مفتخر کنی چه شود؟
به یک نظر اگرم خاک زر کنی چه شود؟
اگر لباس حدوثم بدر کنی چه شود؟
مرا ز سِرِ حقیقت خبر کنی چه شود؟

زمن بدوست نه زیبد جز دو دسته ادب
هر آنچه او کند اولی است زو مپرس سبب
چنان به غمکده افتاده ام نه تاب و نه تب
بکوی خسته دلانکه جان رسیده بلب
اگر برسم عیادت گذر کنی چه شود؟

دریغ آنکه سری سجده بر سجاده نشد

سپیریکه سجده کنان بهر حق نهاده نشد

کجاست سرکش بیباک کاوفتاده نشد

که سر نهاد برین درکه درگشاده نشد

شبی به صدق برین در بسر کنی چه شود ؟

هر آنکه روح و دلش مرد در نمی خیزد

ز ظرف بسته چو مضروف در نمی ریزد

ز باغ حسن ثمر بی بصر نمی چیند

دلا جمال خدا چشم سر نمی بیند

اگر بدیدهٔ دل یک نظر کنی چه شود ؟

ثواب نیست درین کون یکجهت گردی

چنانچه نفس تو پنداشت آنجهت گردی

تو خود ز رهرو تهذیب در جهت گردی

بگو به عقل که تا چند شش جهت گردی

جهات را همه زیر و زبر کنی چه شود ؟

ازآن «چشتی» تو فخر بر لوای تو کرد

هر آنچه کرد ز روز ازل ندای تو کرد

امید بهره دلم طرفه از رضای تو کرد

بگفتمش چه سفرها «معین» برای تو کرد

بگفت یک قدم از خود سفر کنی چه شود ؟

